# فهرست مضامین

# یادگیرنه

د فهرست په آخر کښې دا ذکر نه صرف مناسب بلکه ضروری گڼرم چه د "فتاوی ودودیه" مؤلف مولانا مولوی محمد ابراهیم صاحب ابن حضرت مولانا عبد المجید صاحب د فتاوی ودودیه د تدوین نه پس په قضائے الٰهی سره د شوقدر په میاشت کښې وفات شو۔ اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّا اِلَیْهِ رَاجِعُوْنَ د مرحوم تاریخ وفات دا دے:۔ شپه د جمعة المبارک پنځلسم د شعبان المعظم سنه ۱۳۷۰ھ په حالت د مرض کښې اعلیٰحضرت والئی سوات د دوی د علاج په سلسله کښې قابل قدر مالی امداد کړے وو۔ او کوم وخت چه وفات شو نو اعلیٰحضرت بادشاه صاحب په خپل موټر کښې د هسپتال سیدو شریف نه د دوی لاش "بازارگی بونیر" ته په قدر و احترام سره اولیګلو او د دوی په تکفین تجهیز او مزار جوړولو کښې گرانقدر مالی امداد وکړو۔ مرحوم په آخری ورځو کښې یو منظوم مناجات لیکلے وو۔ او خپل والد صاحب ته ئے دا وصیت کړے وو چه دا نظم دِ په "فتاوی ودودیه" کښې ضرور شامل شی۔ او ما ته ئے هم د خط په ذریعه دا ارشاد فرمائیلے وو چه ځما د وفات نه پس په فتاوی ودودیه کښې دِ ځما تاریخ وفات او لیکلے شی۔ له دے وجهے نه ما ځکښې د هغوی د وفات او تاریخ وفات ذکرا وکړو۔ او لاندې د هغوی هغه منظوم مناجات هم درج کوم۔ الله تعالیٰ دِ د هغوی مغفرت او خپل بے پایانه رحمت نصیب کړی۔ او اعلیٰحضرت والئی سوات دِ د علم پروری په وجه همیشه کامران او شادمان وی۔ آمین

# کتابُ الحجّ

**دَ حج فرضیّت** عبادت په دوه قسمه دے۔ یو بدنی۔ بل مالی۔ بدنی هغه دے۔ چه په هغے کښی د بدن مشقت او تکلیف وی۔ لکه مونځ روژه۔ او مالی هغه دے۔ چه په هغے کښی مال خرچ کول وی۔ لکه زکوٰة۔ او په حج کښی دواړه خبرے جمع دی۔ هم پکښی دَ سفر تکالیف برداشت کول شته۔ هم مال خرچ کول۔

حج دَ نورو ارکانِ اسلام په شان دَ اِسلام یو رکن او فرض عین دے۔ څوک چه ئې د فرضیت نه انکار کوی۔ هغه کافر دے۔ په ټول عمر کښی یوه پیره په هر هغه مسلمان باندے فرض دے۔ چه هغه کم نه کم دَ دومره سرمائے او زادِ راه مالک وی۔ چه دَ خپل وطن نه بے دَ مکے معظمے پورے تلل راتلل او دَ واپسئ پورے د خپل بال بچ ضروری مصارف برداشت کولے شی۔ او دَ وجوب حج کوم شرائط چه به مخکښی ذکر کیږی۔ هغه پکښی ټول موجود وی۔

| | |
|---|---|
| وَ لِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ اِلَيْهِ سَبِيْلًا ط وَمَنْ كَفَرَ فَاِنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ عَنِ الْعَالَمِيْنَ ط (آیة) | دخدائے پاک دپاره په خلقو باندے حج د بیت الله فرض دے۔ "یعنی" په هغه چا چه هغه ورته دَ رسیدو قدرت لری۔ او چا چه کفر وکړه" نقصان ئې خپل دے" پس بیشکه چه خدائ پاک بے نیاز دے دَ ټولو جهانونو نه۔ |

په مذکوره آیت کښی دے خبرے ته اشاره ده۔ چه دحج منکر کافر دے۔ یا دے خبرے ته اشاره ده۔ چه په چا باندے حج فرض وی۔ او وئې نکړی۔ او مړشی نو هغه دَ حج په نه کولو کښی دکافرانو سره مشابه دے۔

**حدیث** نبی علیه السلام فرمایلی دی۔ چه دَ اسلام بنیاد په پنځو څیزونو دے۔ (۱) په دے خبره شاهدی کول چه دَ خدائ پاک نه سِوا هیڅ څوک معبودِ برحق نشته۔ او محمّد صلّی الله علیه وسلّم دَ خدائ پاک بنده او رسول دے۔ (۲) مونځ کول (۳) زکوٰة ورکول۔ (۴) دَ بیت الله حج کول۔ (۵) او دَ رمضان روژے نیول۔

**حدیث** :- کوم سړے یا ښځه چه ضروری حاجت۔ یا ظالم بادشاه۔ یا سخت مرض

---

ك دحج ټول مسئلے دشامی۔ بحر رائق۔ شرف المناسک زبدة المناسک راغستی شویدی ۱۲ ۳۲ے متفق علیه ۱۲

دحج نه منعه نکی - او بے دحج کولو نه مړشی - نو خو بنه ئے خپله ده که یهودی مړکیږی
اوکه نصرانی -

په چا باندے چه حج فرض وی - او بے دَ شرعی عذرنه ئے ترک کی - دَهغوئ دَپاره
په دے حدیث کښې سخت وعید دے -

**شرائط دَحج**

دحج دَپاره مختلف قسمه شرائط دی - شرائط وجوب - شرائطِ وجوبِ
ادا - شرائطِ صحتِ اداء -

**مسئله** :- شرائط وجوب هغه دی - چه دَ هغے په موجودیدو سره حج فرض
کیږی - اوکه یو یکښې مفقود وُ - نو بیا پے نه په خپله حج کول فرض دی - نه دَ خپل
طرفه په بل چا کول - اونه وصیت - دا قسم شرائط اووَه دی -

**اَوَّل** اسلام دے - نو په کافر باندے حج نه فرض کیږی - که په حالت دَکفر کښې چا
حج وکه - او بیا مسلمان شه - نو دغه حج اعتبار نشته - وس که شرائط موجود وو - نو
بل حج پے فرض دے - اوکه نومُسلم په حالت دَکفر کښې ښه مالدار وُ - لیکن بیا فقیر
شوے وُ - بیائے اسلام راوړ - نو حج پے نه دے فرض - ځکه چه د حالت دَکفر غنی والے
معتبر نه دے -

**دَوَیُم** شرط دا دے چه دحج دَ فرضیت نه خبروی - یعنے دا ورته معلومه وی چه
حج فرض دے - لیکن دا شرط صرف دَ هغه مسلمان په حق کښې دے چه هغه وُسی په
دارالحرب کښې -

**دریُم** شرط دا دے چه بالغ وی -

**څلورم** دا دے چه عاقل وی - نو په نابالغ او په لیونی باندے فرض نه دے -

**پنځم** شرط دا دے چه آزاد وی نو په مریئ او په وینځه واجب نه دے - برابره
خبره ده چه مکاتب وی - اوکه مدبر - اوکه ام ولد وغیره -

**شپږم** شرط دا دے چه هغه دَخپل ځان او دَخپل بال بچ دَ ضرورت اصلی نه
سِوا دَ دومره مال مالک وی - چه مکے شریفے له پے با قاعده تلے او راتلے شی -

**اوومر** شرط وقت دحج دے - او هغه دوه میاشتے لس ورځے دی - یعنے شوال
ذی قعد - او لس ورځے د ذی الحج - خو بعضے عالمانو وقت په شرائطِ وجوبِ اداکښې
شمار لیدے -

**مسئله** :- شرائطِ وجوبِ اداء - هغه دی چه دَحج فرضیت پے موقوف نه دے

لیکن حج ادا کول هله ضروری ګرځی - چه هغه موجود وی - نو که شرائطِ وجوب او شرائطِ
وجوبِ ادا دواړه موجود وُو - بیا بچیله حج کول فرض دی - او که شرائطِ وجوب خو موجود
وُو - لیکن دَ وجوبِ ادا په شرائطو کښې یو شرط مفقود وو - بیا پے خپل حج کول نه دی فرض
بلکه دَ خپل طرفه بل څوک حج له لیږل - یا دَ مرګ په وقت کښې دَ حج بدل وصیت کول واجب
دی - او که شرائط دَ وجوبِ ادا موجود - او شرائطِ دَ وجوب نه وُو موجود - نو بیا پے نه
بچیله کول فرض دی - نه په بل - نه وصیت -

شرائطِ وجوبِ ادا پنځه دی - دَ قیدؔ او دَ شاهی ممانعت نشتوالے - تندرستیؔ -
دَ لارےؔ آمن - دا درے شرطونه دَ سړی او دَ ښځے دواړو دَ پاره دی - او دَ عدتؔ نه خالی والے او
دَ محرمؔ ملګرتیا دا دواړه په ښځو پورے خاص دی - لیکن په دے شرائطو کښې اختلاف
شته - بعضے ئے په اول قسم کښې داخله وی - او بعضے په دوئم کښې -

**مسئله** :- شرائطِ صحت ادا هغه شرائط دی چه دَ هغے نه بغیر حج نه شی
صحیح کیدے - یو اسلام لکه چه مینه بیان شوی دی - دوئم احرام دے - که چاپے دَ
احرام تړلو نه دَ حج افعال وکړه نو حج صحیح نه دے - دریم دا دے چه په کوم کال ئے دَ
حج احرام تړلے وی حج په دغه کال وکی - څلورم زمانه دَ حج ده - یعنی افعال دَ حج - کوم
چه طواف دے - او سعی ده - او دَ عرفے وقوف دے - وغیره وغیره - دَ حج په میاشتو کښې په خپله
خپله موقعه کول - پنځم مکان دے یعنی هر فعل په خپل مخصوص مقام کښې کول - مثلاً وقوف
په عرفه کښې - طواف په مسجد حرام کښې - ذبح په حرم کښې - رمی په منیٰ کښې - که دَ حج
افعال ئے په خپل مخصوص مقام کښې ونکړه - بلکه بل ځائے ئے وکړه - نو صحیح نه دی شپږم
تمیز او عقل دے - نو احتراز شه دیرو وړو کی نه چه تمیز ئے بالکل نه وی - دا رنګ احتراز
شه دَ لیونی نه - اووم دَ حج افعال په خپله کول دی - برابره خبره ده چه شرائط دی او که
ارکان - او که واجبات - البته په بعضو افعالو کښې دعذر په وجه نیابت جائز دے -
اتم داحرام نه پس دَ وقوف عرفه نه مینه د جماع نشتوالے دے - که جماع ئے وکړه -
نو حج صحیح نه دے - بلکه فاسد دے - خو افعال دَ حج به ټول پوره کوی - او قضا دَ حج پے
واجبه ده -

**مسئله** :- زید حج کړے وُ - بیا العیاذ بالله هغه کافر شه - نو دغه حج معتبر
نه دے - که بیا مسلمان شه او شرائط موجود وو - نو حج پے فرض دے -

**مسئله** :- که مرئی یا نابالغ حج وکه - نو دا حج فرض نه دے - که مرئے آزاد شه او

نابالغ بالغ شه۔ نو حج پرے واجب دے۔ هله که شرائط موجود وی۔ دارنګ که په زید باندے
حج فرض وُ۔ او هغه حج وُکه۔ خو نیت دَ حج یے دَ عمر دَ طرفه دَ حج بدل کړے وُ۔ یا یے
نیت دَ نفل کړے وُ۔ نو په دے سره دَ زید فریضه نه اداکیږی۔ یعنے دَ زید ذمه
دَ فرض حج نه نهٔ خلاصیږی۔

**دَ احرام اقسام** احرام په لغت کښں حرام کولو ته وائی او کوم وخت چه حاجی دَ میقات
نه نیت وکی۔ او تلبیه ووائی۔ نو په ده باندے یو څو حلال او مباح څیزونه حرام شی۔ دَ
دے وجے نه دے ته احرام وائی۔ نو احرام دَ حج دَ پاره داسے دے۔ لکه تکبیر تحریمه دَ
پاره دَ مانځهٔ۔ او مجازاً هغه دواړو څادرونو ته هم احرام ویلے کیږی۔ کوم چه حاجی
استعمالوی په حالت دَ احرام کښے۔

احرام په څلور قسمه دے۔ (۱) افراد یعنے صرف دَ حج احرام تړل۔ (۲) قِران یعنے
دَ حج او دَ عُمرے شریک احرام تړل۔ (۳) تمتع یعنے اول دَ عمرے احرام تړل۔ او دَ حج په
ورځو کښں دَ عمرے کولو نه پس په بل احرام سره حج کول۔ (۴) صرف دَ عمرے احرام
تړل بے دَ حج دَ میاشتو نه۔ برابره خبره ده چه حج تے تګکښں وی یا پس۔ یا بے دَ حج کولو نه
نو څوک چه دَ افراد احرام وتړی۔ هغه ته مفرِد وائی۔ او څوک چه دَ قران احرام وتړی
هغه ته قارِن۔ او څوک چه دَ تمتع احرام وتړی۔ هغه ته متمتع۔ او څوک چه صرف دَ
عُمرے احرام وتړی هغه ته معتمر وائی۔ دَ دے بیان نه معلومه شوه چه حج په درے
قسمه دے۔ افراد۔ قران۔ تمتع۔ دَ آفاقی خو ښه خپله ده۔ دَ حج په میاشتو کښں۔ دَ
هر یو قسم احرام چه وتړی۔ لیکن دَ احنافو په نزد دَ ټولو نه غوره قران دے۔ بیا تمتع۔
بیا افراد۔ او دَ اهلِ مکه دَ پاره تمتع او قران منع دے۔

**دَ افراد یعنے دَ صرف حج کولو مسنونه طریقه** افراد په لغت کښں یوازے کول او جدا کول دی۔ او په اصطلاح کښں صرف حج کول۔ چه دَ هغے سره عمره دَ قران او دَ تمتع په
طریقه نه وی۔

څوک چه صرف حج کول غواړی۔ هغه له پکار دی چه کوم وخت میقات ته ورسی
هله۔ یا میقات ته دَ رسیدو نه مینه دے حجامت وکی۔ نامه لاندے و بغلو دے واخلی
که دَ سر خریلو عادت یے وُ۔ سر دِ وخریٔ۔ ورنه په منګز دے برابر کی۔ بیا دے دَ
احرام په نیت ولامبی۔ خو دَ دے لمبلو نه غرض صرف صفائی دَ بدن ده۔ دَ غه وجه

۱ـ او که بنځه یے ورسره ده۔ او څه مانع نه وُ۔ نو صحبت دے ورسره هم وکی۔ دا مستحب دی ۱۲ منه

ده - چه د حائضې او نفساء د پاره او د نابالغ د پاره هم مسنون دے - او د غه وجه ده
چه د دے په ځائے تیمم نه دے مشروع - او که غسل ئے ونکه نو اودس دے وکی ګنډلے
جامے دے د بدن نه او باسی - یو لنګ دے او وهی - یو څادر دے واچوی - او که دوه کپړے
نه وے - نو یو هم کافی ده - مستحب دا ده چه دواړه کپړے سپینے وی - نوے یا اینځلے - او لنګ
یا څادر که په مینځ کښې ګنډلے شوے وُ - نو په دے کښې څه حرج نشته - خو غوره دا
ده - چه ګنډون ورکښې بالکل نه وی - بیا دِ په ځان او په زړوکو خوشبو ولګوی - د
نارینه د پاره بے رنګه خوشبو پکار ده - او د ښځے د پاره رنګداره - لیکن داسے خوشبو
دے نه لګوی چه جسم ئے باقی پاتے کیږی پس د لګولو نه - بیا دے دوه رکعته نفل وکی -
خو هله که وقت مکروه نه وُ - د احرام تړلو د پاره دا مونځ مسنون دے - بے د دے نه
احرام تړل هم جائز دی - خو مکروه دی - او که وقت مکروه وُ - بیا مکروه نه دی
د احرام دوه رکعته چه کوی - په اول رکعت کښې دے پس د الحمد نه سورهٔ کافرون
او وائی - او په دویم کښې قل هو الله - دا مونځ به په پټ سر کوی - او بے د اضطباع
نه - اضطباع دے نه وائی - چه د احرام څادر د ښی تنرخ لاندے راولی - په څه اوبه
واچوی - د سلام نه پس دے سر تور سر کیښی - د اِحرام نیت دے په زړه سره وکی - او
په ولاړے او په حالت د سورولی کښې هم جائز دے - او که د احرام نیت ئے په فرض مانځه
پسے وکه - نو کافی دے - یعنی بیا دوه رکعته نفل ته حاجت نشته - بهرحال د احرام نیت
چه ئے په زړه سره وکه - نو په ژبه دے هم او وائی - اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اُرِیْدُ الْحَجَّ فَیَسِّرْهُ لِیْ
وَتَقَبَّلْهُ مِنِّیْ - یعنی یا الله ما د حج نیت کړے دے - نو ځما د پاره ئے آسان که - او
ځمانه ئے قبول که - د نیت سره تلبیه ډیرے ډیرے ویل مستحب دی - او یو پیره ضروری
ده - یعنی لَبَّیْکَ اَللّٰهُمَّ لَبَّیْکَ لَا شَرِیْکَ لَکَ لَبَّیْکَ اِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ لَکَ لَا
شَرِیْکَ لَکَ - نارینه دے په زوره وائی - او ښځه په قلاره - پس احرام وتړلے
شه - وس دے تلبیه ډیره ډیره وائی - خصوصاً د حالتونو بدلیدو په وقت کښې -
مثلاً چه سوریږی - یا د سورلئ نه کوزیږی - یا په لوړ ځائے خیژی - یا کوزیږی - د
سحر په وقت - د شپے چه کوم وقت ئے سترګے بیدارے شی - د چا سره چه ملاقات کوی -
او پس د هر مانځه نه - وغیره وغیره - او د احرام تړلو نه پس دے د احرام د ممنوعاتو
او د واجباتو او د مستحباتو خیال ساتی - د دے نه سوا په حرم شریف کښې د داخلیدو
پورے بل څه خاص کار کول نشته - او هر کله چه د حرم شریف په حد کښې داخل شی

کوم چه د جدې په طرف تلونکی د پاره د مکې معظمې نه د لس میله په فاصله شروع کیږی۔ او په هغه ځای کې دوه سپینې منارې ولاړې دی۔ هلته دې د سورلۍ نه کوز شی۔ چې پیاده دې روان شی۔ که ډیر لنډه تلې۔ لږ لږ سهی۔ او په ډیره عاجزۍ او په انکسار سره دې حرم شریف ته داخل شی۔ او تلبیه۔ تکبیر۔ تهلیل دِ په کثرت سره وائی۔ او کوم وخت چه مکې شریفې ته نژدې شی۔ نو هغې نه د داخلیدو نه مخکې دې غسل وکی۔ دا غسل هم مسنون دې۔ او کوم وخت چه یې په مکه شریفه نظر ولګی۔ دا دُعا دې ولولی:۔ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ لِیْ بِهَا قَرَارًا وَّارْزُقْنِیْ فِیْهَا رِزْقًا حَلَالًا۔ او مکې شریفې ته د قبرستان د طرف نه یعنی د باب المعلّٰی د طرف نه داخلیدل غوره دی۔ او که په بله غاړه داخلیږی نو هم خیر دې۔ به هرحال تلبیه دې وائی۔ او په ډیر ادب او احترام سره دِ ورشی۔ مکې شریفې ته د داخلیدو په وخت کښې دا دُعا وې شی نو ډیره ښه ده:۔ اَللّٰهُمَّ اَنْتَ رَبِّیْ وَاَنَا عَبْدُكَ جِئْتُ لِاُؤَدِّیَ فَرْضَكَ۔ وَاَطْلُبُ رَحْمَتَكَ۔ وَاَلْتَمِسُ رِضَاكَ۔ مُتَّبِعًا لِاَمْرِكَ رَاضِیًا لِقَضَائِكَ اَسْئَلُكَ مَسْئَلَةَ الْمُضْطَرِّیْنَ اِلَیْكَ الْمُشْفِقِیْنَ مِنْ عَذَابِكَ الْخَائِفِیْنَ مِنْ عِقَابِكَ اَنْ تَسْتَقْبِلَنِیْ بِعَفْوِكَ وَتَحْفَظَنِیْ بِرَحْمَتِكَ وَتَجَاوَزَ عَنِّیْ بِمَغْفِرَتِكَ وَتُعِیْنَنِیْ عَلٰی اَدَاءِ فَرَائِضِكَ اَللّٰهُمَّ افْتَحْ لِیْ اَبْوَابَ رَحْمَتِكَ وَاَدْخِلْنِیْ فِیْهَا وَاَعِذْنِیْ مِنَ الشَّیْطَانِ الرَّجِیْمِ۔ او په مدعی دِ هم دُعا وکی۔ او مدعی د مسجد حرام او د قبرستان په منځکښ یو مقام دې۔ هلته دعا کول مستحب دی۔ او دا دعا غوره ده۔ رَبَّنَا اٰتِنَا فِی الدُّنْیَا حَسَنَةً وَّفِی الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّقِنَا عَذَابَ النَّارِ۔ اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْأَلُكَ مِمَّا سَأَلَكَ مِنْهُ نَبِیُّكَ مُحَمَّدٌ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ۔ وَاَعُوْذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا اسْتَعَاذَ مِنْهُ نَبِیُّكَ مُحَمَّدٌ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ۔ بیا که د سامان د غاړې اطمینان وی۔ نیغ دې لاړ شی مسجد حرام ته۔ ورنه د سامان د انتظام نه پس دِ لاړ شی۔ مسجد حرام د بیت الله د جمات نوم دې۔ خانه کعبه د دې جمات په مینځ کښ واقع ده۔ مسجد حرام ته په باب السلام دروازه باندې داخلیدل مستحب دی۔ تلبیه دې وائی۔ او په ډیرې عاجزۍ او په ادب سره دې داخلیږی۔ مینه دې ښۍ خپه ښ باسی۔ او دا دعا دې ولولی۔ بِسْمِ اللّٰهِ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰی رَسُوْلِ اللّٰهِ رَبِّ اغْفِرْلِیْ ذُنُوْبِیْ وَافْتَحْ لِیْ اَبْوَابَ رَحْمَتِكَ۔ او مسجد حرام ته د داخلیدو نه پس چه یې کوم وخت په کعبه شریفه اول وار سترګې ولګی۔ درې پیرې دې او وائی۔ اَللّٰهُ اَکْبَرُ

لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ - او کعبه ته ئې کتلو په حالت کښې دِ دا دعا ولولي - اَللّٰهُمَّ زِدْ هٰذَا الْبَيْتَ تَشْرِيْفًا وَّتَعْظِيْمًا وَّتَكْرِيْمًا وَّمَهَابَةً وَّزِدْ مِنْ شَرَفِهٖ وَكَرَمِهٖ مِمَّنْ حَجَّهٗ وَاعْتَمَرَهٗ تَشْرِيْفًا وَّتَكْرِيْمًا وَّتَعْظِيْمًا وَّبِرًّا اَللّٰهُمَّ اَنْتَ السَّلَامُ وَمِنْكَ السَّلَامُ فَحَيِّنَا رَبَّنَا بِالسَّلَامِ - بيا دې درود شريف ووائي - او څه دعا چه ئې خوښه وي - او دعوا اړي - دغه موقعه د دعا قبوليت ده - او په دغه وقت کښې دا دعا هم مستحب ده - اَعُوْذُ بِرَبِّ الْبَيْتِ مِنَ الدَّيْنِ وَالْفَقْرِ وَمِنْ ضِيْقِ الصَّدْرِ وَعَذَابِ الْقَبْرِ - کومې دعاگانې چه د نبي عليه السلام نه منقولې دي - که هغه لوستې شي - نو غوره ده - ورنه څه خاصه دعا په څه خاص مقام پورې مخصوصه نه ده - چه څوک ئې هغه ضروري ده -

مسجد حرام ته چه داخل شي - نو تحية المسجد دې نه کوي - بلکه تحية المسجد طواف دے - نو په دعا پسې دې تلبيه وائي - او طواف قدوم دې وکي - البته که ډ جماعت فوت کيدلو يا د مونځ قضا کيدلو يا د مستحب وقت د تللو ويره وه - نو مېنه دِ مونځ وکي - ور پسې دې طواف - او په مسجد حرام کښې د طواف کونکي ډپاره د مونځ کونکي په مخکښې تيريدل جائز دي - او د دا رنگ د طواف نه کونکي ډپاره هم جائز دي - خو د سجدې په ځائے کښې دې نه تيريږي -

مسجد حرام د ټولو جماتونو نه افضل دے - په هغې کښې د يو مانځه ثواب د يو لاکه مونځونو سره برابر دے - خو د ثواب دا زياتوالے مخصوص دے په فرض مانځه پورې - او نفل په کور کښې غوره دي - دا رنگ د ا ثواب صرف نارينه ته ملاويږي - او د ښځې ډپاره مونځ په کور کښې غوره دے -

طواف په لغت کښې د څه شي نه چاپيره گرځيدلو ته وائي - او د حج په بيان کښې د طواف نه مراد دا دے چه د خانه کعبې د څلور وو اړخو ظرفونو نه اووه پيرے چاپيره وگرځي -

د طواف طريقه دا ده - چه د حجراسود په مخکښې په دې طريقه ودريږي - چه ښئ اوگه ئې مقابل شي - د حجراسود گټې غاړې سره - او حجراسود ئې ټول راشي ښئ ځ ئې ته - بيا دې د طواف نيت وکي - نيت ئې په زړه سره فرض دے - او غوره دا ده چه په ژبه هم دا او وائي :- اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اُرِيْدُ طَوَافَ بَيْتِكَ الْمُحَرَّمِ سَبْعَةَ اَشْوَاطٍ فَيَسِّرْهُ لِيْ وَتَقَبَّلْهُ مِنِّيْ يَا اَللّٰهُ - د خانه کعبې نه اووه ځله د

چاپیره گرځېدلو نیت م کړې ۔ نو خُما دپاره ئې آسان کړه ۔ او خُما نه ئې قبول کړه ۔ بیا دې شپږ ئې ړه ته لږ اوخوزي ۔ چې حجرا سود بالکل مقابل ئې کړي ۔ نو د ښۍ نه دې مخامخ ودرېږي ۔ دواړه لاسونه دې تر غوږونو اوچت کړي ۔ دا دُعا دې اولولي ۔
بِسْمِ اللّٰهِ اَللّٰهُ اَكْبَرُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَلِلّٰهِ الْحَمْدُ ۔ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ اَللّٰهُمَّ اِيْمَانًا بِكَ وَوَفَاءً بِعَهْدِكَ وَاِتِّبَاعًا لِسُنَّةِ نَبِيِّكَ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ۔ بیا دې لاسونه پرېږدي ۔ د حجرا سود استلام دې وکړي یعنې ښکل دې کړي ۔ په دې طریقه چې دواړه ورغوي ئې ایږدي په حجرا سود ۔ او مخ د دواړو ورغوو په مینځ کښې ۔ او په تندې ئې ښکلوي ۔ په ټکارې او شقا دې نه اوباسي او د بعضو په نزد په حجرا سود باندې درې پېرې سر ایښودل مستحب دي ۔ او که د گڼې په وجه ئې نشه ښکلولې ۔ نو تکلیف دې چاله نه ورکوي ۔ صرف دواړه منگولې دې په حجرا سود کېږدي ۔ بیا دې ورغوي ښکل کړي ۔ او که دا ئې هم نشو ې ایښودې نو څه لخته دې حجرا سود ته وروړي ۔ بیا دې د هغه لخته ښکل کړي ۔ او که دا ئې هم نشو کولې ۔ نو دواړه لاسونه چې د غوږونو پورې اوچت کړي ۔ بیا دې د حجرا سود مخې ته په دې طریقه ونیسي چې د لاسونو شا ده ئې مخ ته را شي ۔ او د ښۍ مخ حجرا سود ته ۔ او دا خیال دې کوي چې منگولې م په حجرا سود پورې دي ۔ او دا دې ولولي ۔ اَللّٰهُ اَكْبَرُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَالصَّلٰوةُ عَلٰى سَيِّدِنَا الْمُصْطَفٰى ۔ بیا دِ لاسونه ښکل کړي ۔

د طواف قدوم نه پس که ئې د سعی کولو اراده هم وه ۔ نو دا طواف به په اضطباع سره کوي ۔ یعنې څادر به ئې د ښي ترخ د لاندې را وښتې او په اوږه اوږه به ئې اچولې وي ۔ او د دې طواف په اولو درې پیرو کښې به رمل هم کوي ۔ رمل دې ته وائي ۔ چې لږ په نخوت سره ۔ او کم حرز ونکې ۔ قدمونه نژدې نژدې ایښودونکې د پهلوانانو په شان لږ زر زر په ښه قوت سره ځي ۔

او که په طواف قدوم پسې ئې د سعې کولو اراده نه وه ۔ نو بیا د رمل او بیا د اضطباع نه به ئې وکړي ۔ به هرحال د طواف شروع کولو نه پس دې تلبیه نه وائي ۔ د حجرا سود د استلام نه پس دِ د بیت الله دروازې غاړې ته یعنې خپل ښي جانب ته روان شي ۔ او په طواف کښې دې حطیم هم راولي ۔ حطیم د بیت الله شمالي جانب ته د بیت الله سره متصل د زړې لږه ټکړه ده ۔ د سړي د قد هومره دیوال ترې تاو دې ۔ د حطیم

اوډ بیت الله په مینځ کښې دے نه ځي۔ اوکوم وخت چه رکن یماني یعنے د بیت الله جنوبي مغربي
کونړ ته ورسي۔ په هغې دے صرف دواړه لاسونه یا یو ازے ښۍ لاس ابلسوي۔ ښکلوی دے نه
اوکه کښې ډیره وه۔ نو دلته دے اشاره هم نه کوي۔ بیا چه حجراسود ته اورسي۔ نو د حجراسود
استلام دے وکي۔ لیکن لاسونه دے اوچتوی نه۔ لاس اوچتول صرف په اوله پیره
دی۔ نو حجراسود ته چه ورسید۔ یو چکرئے پوره شه۔ دا رنګ دے اووه پیرے پوره
کی۔ د اووم چکرنه پس دے په اتمه پیره بیا د حجراسود استلام وکی۔ بس نو طواف
پوره شه۔ بیا دے روان شي مقام ابراهیمؑ ته۔ کوم چه د بیت الله مشرق جانب ته
د طواف د ځائے په غاړه دے۔ او په تلو کښې دے دا آیت ولولي۔ وَ اتَّخِذُوْا مِنْ
مَقَامِ اِبْرَاهِيْمَ مُصَلًّى۔ نو مقام ابراهیمؑ دے د بیت الله او د ځان په مینځ
کښې راولي۔ دوه رکعته دے وکي۔ په اول رکعت کښې دے پس د الحمد نه ولولي
سورهٔ کافرون اوپه دویم کښې قل هو الله۔ اوکه هلته ئے ځائے ونه موند
نو بیت الله کښې دے دننه وکي۔ یا په حطیم کښې۔ یا بل مناسب ځائے۔ بیا دے
دُعا وکی۔ او د آدم علیه السلام نه دا دُعا منقوله ده۔ اَللّٰهُمَّ اِنَّكَ تَعْلَمُ سِرِّيْ
وَ عَلَانِيَتِيْ فَاقْبَلْ مَعْذِرَتِيْ وَ تَعْلَمُ حَاجَتِيْ فَاَعْطِنِيْ سُؤْلِيْ وَ تَعْلَمُ مَا فِيْ نَفْسِيْ
فَاغْفِرْلِيْ ذُنُوْبِيْ۔ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْئَلُكَ اِيْمَانًا يُّبَاشِرُ قَلْبِيْ وَ يَقِيْنًا صَادِقًا حَتّٰى اَعْلَمَ
اَنَّهٗ لَا يُصِيْبُنِيْ اِلَّا مَا كَتَبْتَ لِيْ وَرِضًى بِمَا قَسَمْتَ لِيْ يَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ۔ د طواف د
مانځه نه پس دے راشي ملتزم ته۔ ملتزم د بیت الله د دروازے او د حجراسود
په مینځ کښې یو دیوال دے۔ هلته دعا مسنونه ده۔ ملتزم ته دے ورغاړه وزی۔
کله دے په ښے اننګے بدی۔ کله چپ۔ او دواړه لاسونه دے اوچت کی۔ په ډیر
خشوع خضوع سره دے دعا وکی۔ دا هم د دعا قبلید وخت دے۔ بیا دے راشي
چاه زمزم ته۔ دا هم مستحب دے۔ او مخ په قبله دے په ولاړے د زمزم د اوبو نه
په درے ایندے ښے وُسکی۔ چه تنده ئے مړه شي۔ او په ځان دے د تبرک د پاره ونولی
او دا دُعا دے ولولي۔ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْئَلُكَ عِلْمًا نَافِعًا وَّ رِزْقًا وَّاسِعًا وَّ
عَمَلًا صَالِحًا وَّ شِفَاءً مِّنْ كُلِّ دَاءٍ۔ په دغه وخت کښې هم دُعا قبلیږي۔
د مقصد د پاره سعیٔ د طواف زیارت نه پس کول غوره دی۔ لیکن که وس ئے
د سعیٔ کولو اراده وه۔ نو د آب زمزم سکلو نه پس دے د حجراسود استلام دکی۔ نو

له او بعضے وائي چه د طواف د دوګانه نه پس دے راشي زمزم ته۔ بیا دے لاړ شي ملتزم ته ۱۲ منه

په باب الصفا دروازه دے اوزی۔ مینه دے چپه خپه او باسی۔ او دا دعا دے ولولی بِسْمِ اللّٰهِ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِیْ ذُنُوْبِیْ وَافْتَحْ لِیْ اَبْوَابَ فَضْلِكَ او صفا ته نژدے دے اولولی۔ اَبْدَأُ بِمَا بَدَأَ اللّٰهُ بِهٖ اِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللّٰهِ۔ او په صفا دے دومره اوخیژی چه بیت الله په باب الصفا دروازه کښی دننه په نظر راشی۔ بس زیات دِ نه خیژی۔ نو مخ په قبله دے دواړه لاسونه داونږ پورے۔ د دعا په شان اوچت کی۔ او تکبیر تهلیل حمد دے درے درے پیرے اووائی۔ که دا تکبیر تهلیل ویلے شی نو ډیره غوره ده۔ اَللّٰهُ اَكْبَرُ۔ اَللّٰهُ اَكْبَرُ۔ وَ لِلّٰهِ الْحَمْدُ۔ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلٰى مَا هَدَانَا۔ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلٰى مَا اَوْلَانَا اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلٰى مَا اَلْهَمَنَا۔ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ هَدَانَا لِهٰذَا وَمَا كُنَّا لِنَهْتَدِیَ لَوْلَا اَنْ هَدَانَا اللّٰهُ۔ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِیْكَ لَهٗ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ یُحْیِیْ وَیُمِیْتُ وَهُوَ حَیٌّ لَا یَمُوْتُ بِیَدِهِ الْخَیْرُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ۔ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ صَدَقَ وَعْدَهٗ۔ وَنَصَرَ عَبْدَهٗ وَاَعَزَّ جُنْدَهٗ وَهَزَمَ الْاَحْزَابَ وَحْدَهٗ۔ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَلَا نَعْبُدُ اِلَّا اِیَّاهُ مُخْلِصِیْنَ لَهُ الدِّیْنَ وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُوْنَ۔ اَللّٰهُمَّ كَمَا هَدَیْتَنِیْ لِلْاِسْلَامِ اَسْئَلُكَ اَنْ لَا تَنْزِعَهٗ مِنِّیْ حَتّٰى تَوَفَّانِیْ وَاَنَا مُسْلِمٌ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ الْعَلِیِّ الْعَظِیْمِ ط اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى سَیِّدِنَا مُحَمَّدٍ وَعَلٰى اٰلِهٖ وَصَحْبِهٖ وَاَتْبَاعِهٖ اِلٰى یَوْمِ الدِّیْنِ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِیْ وَلِوَالِدَیَّ وَلِشُیُوْخِیْ وَلِلْمُسْلِمِیْنَ اَجْمَعِیْنَ۔ وَسَلَامٌ عَلَى الْمُرْسَلِیْنَ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ ٥ او که دا نه شی لوستے نو په خپله ژبه کښی دے دعا کوی او تلبیه دِ وائی۔ او دلته دے په دعا کښی کافی وقت تیر کی۔ بیا دے د صفا نه کوز شی۔ په خپل رفتار سره دے روان شی۔ مروه ته۔ نو د جمات په دیوال کښی چه شین میل لګیدلے دے۔ کوم وقت چه هغه شین لاس یا نے شی۔ د هغه ځاے نه دے د بل شین میل پورے په دوړ غلی۔ خو ډیر تیز نه۔ او د صفا او د مروه په مینځ کښی دا دعا ماثوره ده۔ رَبِّ اغْفِرْ وَارْحَمْ وَاَنْتَ الْاَعَزُّ الْاَكْرَمُ۔ د دویم میل نه چه اوزی۔ بیا دے په خپل رفتار ځی۔ چه د مروه په اوله یا په دویمه پوړی وخیژی نو دے بنی طرف ته خفزن شی۔ دپاره د دے چه مخ ئے برابر شی قبلے ته۔ دلته دے هم لاسونه اوچت کی۔ د ډیر ساعت پورے دے دعا کوی۔ لکه په صفا چه ئے کړے وه۔ په صفا او مروه باندے ختل چه دی۔ دا مسنون دی۔ اګر که بے ختلو

هم بیت الله په نظر راشی۔

دَ صفا نه مروه پورے یوه پیره شوه۔ بیا به د مروه نه دَ صفا پورے دویمه پیره شی دارنګ دے اوو پیرے پوره کی۔ اوومه پیره به ئے ختمیږی په مروه۔

سعی دَ صفا نه شروع کول او په مروه باندے ختمول واجب دی۔ او په هره پیره دِ دُعا لولی۔ کومه چه ورته یاده وی۔ اوزړه ئے بنه اخلی۔ دَ سعی ختمید و نه پس دے مطاف[له] غاړے له راشی۔ دوه رکعته نفل دے په جُمات کښ وکی۔ دا مسنون دی۔

مفرد چه طواف قدوم اوسعی وکی۔ نو په هغه تړلی احرام به په مکه شریفه کښ قیام کوی۔ دَ احرام دَ ممنوعات نه به ځان ساتی۔ نفل طواف چه تے څومره کیدے شی۔ کوی دے۔ خو عُمره دِ نکوی۔ او نفل سعی نشته۔ او نفل طواف د باهر او سیدونکی دپاره دَ نفل مانځه نه غوره دے۔

دلوئ اختر دَ میاشتے په اوم تاریخ به امام دَ ماسپخین مانځه نه پس خطبه وائی هغه نه دے غوږ کیدی۔ په اتم تاریخ دَ نور ختونه پس دِ د اسے وخت مِنیٰ له لاړ شی چه هلته د ماسپخین مونځ په مستحب وخت کښ وکړے شی۔ (مِنیٰ دَ مکے معظمے نه مشرق جانب ته درے میله لرے یو کلے دے۔ کوم ځائے چه قربانی اورمی کیږی۔ او هغه په حرم کښ داخل دے) شپه به په مِنیٰ کښ تیره کی۔ پنځه مونځونه به هلته وکی۔ یعنے د ماسپخین نه دَ سحر پورے۔ بیا په نهم تاریخ دَ سحر دَ مانځه نه پس کوم وخت چه غاره په ثبیر غره باندے بنه ولګی۔ روان به شی په لارے دَ ضَب۔ ضَب دَ مسجد خیف سره متصل یوه غونډئ ده۔ په دغه لاره تلل مستحب دی۔ تلبیه او تکبیر دِ وائی۔ اوځی دے عرفات له۔ جبل رحمت په عرفات کښ یو غر دے۔ کوم وخت چه ئے په جبل رحمت باندے نظر ولګی۔ دعا دے غواړی۔ او تکبیر تسبیح تهلیل او استغفار دِ کوی۔ او دا دعا غوره ده۔ اَللّٰهُمَّ اِلَيْكَ تَوَجَّهْتُ وَ عَلَيْكَ تَوَكَّلْتُ وَ وَجْهَكَ اَرَدْتُ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِیْ وَتُبْ عَلَیَّ وَ اَعْطِنِیْ سُؤْلِیْ وَوَجِّهْ لِیَ الْخَيْرَ حَيْثُ تَوَجَّهْتُ سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ بیا دے تلبیه وئیونکے داخل شی عرفات ته۔ او دَ نهم ذی الحجے نه مینه یا په دغه ورځ دَ نور ختونه مینه عرفات له تلل خلاف سنت دی۔

---

[له] مطاف دَ کعبے شریفے نه چاپیره د طواف کولو ځائے دے۔ سنګ مرمر پکښ لګیدلے دے ۱۲ منه

عرفات دَ مکے معظمے نه مشرق جانب ته تقریبًا نهه میله او دَ مِنیٰ نه شپږ میله لرے
یو خُنکل دے۔ دَ نهم تاریخ دزوال نه پس دلسم تاریخ دَ صبح صادق پورے ټه وقت
هلته حصاریدل اګرکه دَ لږ ساعت دَ پاره وی۔ دحج رکن اعظم دے۔ په نهم تاریخ دَ
سحر دَ مانځه نه پس چه روان شی۔ نو مسجد نمره چه دَ عرفات په غاړه کے طرف نه
واقع دے۔ هغے ته نژدے حصار شی۔ دَ خوراک سکاک نه پس دِ دَ زوال نه مخکښ مخکښ
اودس وکی۔ او که غسل ئے وکه نو ډیره غوره ده۔ مسجد نمره ته دے ورشی۔ دَ
پاره ددے چه دَ ماسپخین په وقت کښ دَ ماسپخین او دَ مازیګر مونځ یو ځائے وکی سره
دَ جماعت نه په یو بانګ او په دوه تکبیرونو سره۔ او په دے جمع کولو کښ مسافر
او مقیم او مکی او غیر مکی ټول برابر وی۔ نو کوم وقت چه امام په ممبر کینی۔ مؤذن
به بانګ اووائی۔ امام به دَ جمعے په شان دوه خطبے ولولی۔ خطبه به مشتمله وی په
احکامو دَ حج۔ خو دا خطبه واجب نه ده۔ بلکه سنت ده۔ دَ خطبے د فراغت نه پس
به مؤذن تکبیر وکی۔ نو دَ ماسپخین جماعت به وکړے شی۔ دماسپخین دَ فرضونه پس
به تکبیر تشریق اووائی۔ لیکن سنت نفل به نه کوی۔ بیا به مؤذن بل تکبیر وکی۔ نو
دَ مازیګر مونځ به هم په جماعت سره وکړے شی۔ دماسپخین په وقت کښ دَ دے دواړو
مونځونو دَ جمع کولو دپاره دا شرائط دی۔

(۱) په عرفات کښ دے وی۔ یا ورته نژدے۔ (۲) نهم تاریخ دے وی دذی الحج۔
(۳) جماعت۔ (۴) امام وقت په خپله وی یا دَ هغه نائب۔ (۵) په دواړو مونځونو کښ دَ
حج دَ احرام شته والے۔ (۶) دمازیګر دَ مانځه نه دَ ماسپخین دمانځه تقدیم۔ که په دے
شرطونو کښ یو مفقود وُ۔ نو دَ دواړو مونځونو جمع صحیح نه ده۔ بلکه هر یو به په خپل
خپل وقت کښ کول واجب دی۔

دمانځه دَ فراغت نه پس دِ سمدستی په عرفات کښ دخپلو حصاریدو ځائے له
لاړ شی۔ که جبل رحمت ته نژدے کوم ځائے چه دَ تورو کاڼو فرش دے۔ ځائے
ملاو شه۔ نو هلته حصاریدل غوره دی۔ هغه دنبی صلعم دَ وقوف ځائے دے هغے
نه مسجد صخره وائی۔ چاپیره ئے دَ دیوال وړه احاطه هم شته۔ او که هلته ځائے ملاو
نشه۔ نو په عرفات کښ دننه هر ځائے چه وقوف کوی خیر دے۔ خو جبل
رحمت ته نږدے غوره دی۔ او دَ جبل رحمت دَ پاسه دِ نه ختی۔

بطن عرنه دَ مسجد عرفات مغربی جانب ته متصل یوه وادی ده۔ په هغے کښ

وقوف نه دے جائز. باقی هر ځائے کیدے شي ـ خو چه په عرفات کښې وي ـ البته د خلقو نه ځانله وقوف کول مکروه دي ـ او د لارې په غاړه کښې هم مکروه دي ـ او غوره دا ده چه په خپل موقف کښې مخ په قبله ولاړ وي ـ ورنه ځملاستل کیناستل پکښې هم جائز دي ـ کوے دعا کانے چه ورته یاد وي ـ په موقف کښې دے ډېر زیات وخت اوسي او هغه لوی ساعت په ساعت دے لبیک وائي ـ او توبه او استغفار ډیر ډیر کوي ـ دا ډیر ښه وقت دے ـ د نبي علیه السلام نه دا دُعا ثابته ده ـ که خوک یے لوستے شي ـ نو ډیره غوره ده :-

لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ط اَللّٰهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ كَالَّذِيْ تَقُوْلُ وَخَيْرًا مِّمَّا نَقُوْلُ ـ اَللّٰهُمَّ لَكَ صَلٰوتِيْ وَنُسُكِيْ وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِيْ وَاِلَيْكَ مَآبِيْ وَلَكَ رَبِّ تُرَاثِيْ ـ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَوَسْوَسَةِ الصَّدْرِ وَشَتَاتِ الْاَمْرِ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْئَلُكَ مِنْ خَيْرِ مَا تَجِيْءُ بِهِ الرِّيْحُ ـ وَاَعُوْذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا تَجِيْءُ بِهِ الرِّيْحُ ـ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنِيْ فِيْ قَلْبِيْ نُوْرًا وَّفِيْ سَمْعِيْ نُوْرًا وَّفِيْ بَصَرِيْ نُوْرًا ـ اَللّٰهُمَّ اشْرَحْ لِيْ صَدْرِيْ وَيَسِّرْ لِيْ اَمْرِيْ ـ

او په یو روایت کښې راغلي دي ـ چه کوم مسلمان د زوال نه پس په موقف کښې مخ په قبله سل ځله لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ط اووائي ـ بیا سل ځله قل هو الله ـ بیا سل ځله درود ابراهیمي ـ نو خدائے پاک فرښتو ته اوفرمائي چه ما دا بنده او بښه ـ او د ده شفاعت م د ده په حق کښې قبول که ـ او که دے اهلِ موقف د پاره شفاعت کوي ـ هم به یے قبول کم ـ چه نور پریوځي ـ نو تلبیه دے وائي ـ دعا دے کوي ـ او امام سره دے مزدلفے ته په هغه لار روان شي ـ کومه چه د دوو غرونو په مینځ کښې ده ـ په سکون او په وقار سره دے ځي ـ مزدلفه د عرفے او د مِنٰی په مینځ کښې یو میدان دے ـ او د مِنٰی نه مشرق جانب ته دره میله لرے واقع دے ـ د نور پریوتو نه مینه د عرفات نه وتل نه دي جائز ـ که مخکښې اووت نو دم به لازم شي ـ

که لاره کشاده وه او خلقو ته تکلیف نه وُ ـ نو لږ تیز دے ځي ـ ورنه په قلاره قلاره ـ او مزدلفے ته د داخلیدو د پاره غسل مستحب دے ـ چه راشي نو غسل دِ وکي ـ یا او دس په مزدلفه کښې جبلِ قزح ته نزدے د لارے په غاړه دِ کوز شي ـ په لارے کښې دے نه حصار یږي ـ په مزدلفه کښې هر ځائے چه یے خوښه وي ـ وقوف کولے شي ـ

حصار یدے شی۔ بے دَ وادی محسّرنه۔ په وادی محسر کښې وقوف نه دے جائز۔ نو د ساماں کوزولو مینه مینه دے دَ ماښام اوَ دَ ماسختن مونځ دَ ماسختن په وقت کښې په یو بانګ او په یو اقامت سره او کی۔ په مینځ کښې دے سنت نفل هیڅ نه کوی۔ بلکه ورستو دے کوی۔ په مزدلفه کښې چه دواړه مونځونه جمع کوی۔ نو دَ ماښام دَ مانځهٔ دَ پاره به نیت دَ اداکوی نه دَ قضا ځکه دَ قضا په نیت سره هم کیدے شی۔ اوَ دَ دے جمع دَ پاره جماعت شرط نه دے۔ بلکه برابره خبره ده چه ځان ځانله کوی۔ او که په جماعت سره۔ خو جماعت غوره دے۔ په مزدلفه کښې دا جمع واجبه ده۔ او په عرفه کښې دَ ماسپخین اوَ دَ مازیګر هغه جمعه مسنونه ده۔ او په مزدلفه کښې دَ جمع دَ پاره امیر یا دَ هغه نائب شرط نه دے۔ او خطبه ورله هم مسنونه نه ده۔ او تکبیر هم دلته دَ دواړو مونځونو دَ پاره یو دے۔ البته دَ جمع دَ پاره دلته هم شرائط شته۔

**یو** دَ احرام حج شته والے دے۔ نو که دَ حج احرام چا نه وُ تړلے۔ دَ هغه دَ پاره جمع نده جائز۔

**دوَیم** دا دے چه وقوف دَ عرفه نه مینه کړے وی۔ نو که څوک مینه په مزدلفه کښې حصارشه۔ دَ ماښام اوَ دَ ماسختن جمع ئے وکړه۔ ورستو عرفات ته لاړ۔ نو اوس ئے جمع نه ده جائزه

**دریم** دا چه دَ ذی الحجے لسم شپه وی۔

**څلورم** دا چه دا جمع په مزدلفه کښې وی۔ دَ مزدلفے نه مخکښې اوبس نه ده جائزه۔

**پنځم** دا چه وقت دَ ماسختن وی۔ نو که مزدلفے ته ماښام ورسیدل نو دَ کوم پورے چه دَ ماسختن وقت نه وی شوے دَ ماښام مونځ به هم نه کوی۔

**شپږم** شرط دواړه مونځونه په ترتیب سره کول دی۔ نو که اول ئے دَ ماسختن مونځ وکه۔ بیا دَ ماښام نو دَ ماسختن مونځ به بیا کوی۔

په عرفات کښې یا په لارے کښې که دَ ماښام یا دَ ماسختن مونځ کوی نو نه دی جائز۔ که چا وکه۔ نو دَ هغے راګرځول به دلته واجب وی۔ البته که دَ چا دا یره وه چه مزدلفے ته رسم نو صبا به ختلے وی۔ بیا کولے شی۔ دَ ماښام او دَ ماسختن مونځ چه وکی۔ نو په مزدلفه کښې دے پاتے شی۔ هلته دَ صبح صادق پورے پاتے کیدل سنت موکده دی۔ په مزدلفه کښې ئے دَ شپے چه څو مره عبادت کیدے شی۔ کوی دے۔ دا شپه دَ لیلة القدر نه هم غوره ده۔ بیا چه دَ لسم تاریخ صبح صادق وخیژی۔ نو دَ سحر

---

ك بیکن که راوے تلو ګرځاوُ۔ او سحر شه۔ نو هغه مونځ شوی دے قضا پے لښته ۱۲ منه

مونځ دِ په تیارے کښې په اول وقت کښې دامام سره وکی ۔ اوکه دَ امام سره ئې ونکړے شه یوازے دے وکی ۔ نو دَ مشعر حرام ځنګه دِ مخ په قبله تسبیح تهلیل وائی ۔ اولاس سونه دِ ددعا دپاره اوچت کی ۔ په دعا کښې دے مشغول شی ۔ نوچه نور ختو ته دَ دوه رکعته په مقدار وقت پاتے وی ۔ روان دے شی منی ته ۔ چه وادی محسر ته ورسی ۔ نو دَ هغه نه دے په منډه اوځی ۔ دَ مزدلفے نه دِ دَ تلو په وقت کښې دچنړے دَدانے یادګورے دَ زیری هومره اوه کیڼے اوچنے کی ۔ ځان سره دے واخلی ۔ اوکه په لارے کښې یا دَ بل ځائے نه اوچتوی هم جائیزه ده ۔ خو دجمرات دَ څنګ نه ۔ یعنی دَ منی په لارے کښې درے ځایونه دی چه دَ سړی دَ قدم هومره په کښې دَ ګټو درے ستنے ولاړے دی ۔ دغه درے ځایونو ته جمرات اوجمار ویلے شی ۔ اوهر یو ته جمره ویلے شی ۔ په دے کښې کوم یو چه مکے طرف ته دے ۔ هغے ته جمرة العقبه اوجمرة الآخری اوجمرة الکبری وائی ۔ او مینځنے ته جمرة الوسطی ۔ اوکوم چه مسجد خیف ته نزدے دے ۔ هغے ته جمرهٔ اولی وائی

چه منی ته راشی ۔ نو په مینځنے لارے ورشی ۔ جمرة الآخری ته ۔ نو په جوړځائے کښې دِ کم نه کم دَ پنځه شرعی ګزه په فاصله یا دَدے نه هم لږ درے په دے طریقه ودریږی ۔ چه منی دده ښی طرف ته راشی ۔ اومکه شریفه چپ طرف ته ۔ نو په غټه ګوته اوپه مسواکے ګوته دِ کیڼے ونیسی ۔ دغه ټلے دے پے اوولی ۔ په اوله کیڼے دِ تلبیه بنده کړی ۔ اوپه هره کیڼه دِ بِسۡمِ اللّٰهِ اَللّٰهُ اَکۡبَرُ رَغۡمًا لِّلشَّیۡطَانِ وَرِضًی لِّلرَّحۡمٰنِ وائی ۔ دکیڼے دِ ویشتلو په وقت کښې دے لاس سونه دومره اوچتوی ۔ چه تشخ ئے ښکاره شی ۔ اوکوم وقت چه دَرمی نه وزګار شی ۔ هلته دے حصار نړی نه بلکه را دِ شی خپل ځائے له ۔ اوپه لسم تاریخ باندِ دَرمی وقت دَ صبح صادق نه دَ یولسم تاریخ دَ صبح صادق پورے دے ۔ لیکن دَ نور ختو نه دَ زوال پورے وقت مسنون دے ۔ اودَ نور پریوتو پورے مباح ۔ اودَ نور پریوتو نه دَ صبا ختو پورے مکروه ۔

دَرمی نه چه وزګار شی قربانی دِ وکی ۔ که په ذبحه پوهیږه ۔ نو په خپل لاس ذبحه غوره ده ۔ اوکه نے کیدے شوه ۔ نو دَ قربانئ لږه غوښه دِ دَ ځان سره هم واخلی ۔ ځکه چه دَ خپلے قربانئ دَ غوښے نه خوړل مستحب دی ۔ باقی دِ صدقه کی ۔ دَ مفرد دَ پاره دَ حج په شکریه کښې قربانی مستحب ده ۔ اودَ قارن اودَ متمتع دَپاره واجبه ده ۔ اودَدے قربانئ احکام په شان دَ قربانئ دَ عید الاضحی دی ۔ کوم حیوان چه هلته قابل دَ قربانئ دے ۔ هغه دلته هم دے ۔ اوخه رنګ چه په اوبن، میږه، غوا

کېښ هلته دَ اوو کسانو شرکت جائز دے۔ دلته هم دا حکم دے۔

دَ قربانۍ دَ فراغت نه پس دِ مخ په قبله کېښي۔ سر دِ وخرئي۔ یا دِ ئې لنډ واخلي۔ خو دَ نارینه دَ پاره خریل غوره دی۔ دَ حجامت شروع دَ ښئ اړخ نه پکار ده۔ او دَ حجامت په شروع او په آخر دواړو کښې دے تکبیر وائي۔ او ښځې دَ پاره چونکه خریل نه دی جائز۔ دَ دے وجې نه دے ټول وېښته د نیسي۔ دَ یوے ګوتې په مقدار دِ ئې لرے کي۔ یا لنډ زیات۔ خو په نا محرم سړی بانـدے نه۔ بلکه په خپله یا په محرم۔ دَ سر خریلو یا دَ تقصیر کولو نه پس دِ دَ نوک او وېښته لرے کي۔ دَ بریتو سنت دِ واخلي۔ او دَ حجامت نه مخکښې دَ بریتو او دَ نوک وېښته لرے کول وغیره نه دی جائز۔ د حجامت نه پس وېښته او نوکونه دفن کول غوره دی۔

دَ حجامت په وخت کښې او دَ هغې نه پس دِ تکبیر وائي۔ او دا دعا غوره ده:۔ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلٰی مَا هَدَانَا وَاَنْعَمَ عَلَیْنَا اَللّٰهُمَّ هٰذِهٖ نَاصِیَتِیْ بِیَدِکَ فَتَقَبَّلْ مِنِّیْ وَاغْفِرْلِیْ ذُنُوْبِیْ اَللّٰهُمَّ اکْتُبْ لِیْ بِکُلِّ شَعْرَةٍ حَسَنَةً وَامْحُ بِهَا عَنِّیْ سَیِّئَةً وَارْفَعْ لِیْ بِهَا دَرَجَةً اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِیْ وَلِلْمُحَلِّقِیْنَ یَا وَاسِعَ الْمَغْفِرَةِ آمین۔ او پس دَ حجامت دَ فراغت نه دِ دا دُعا او وائي:۔ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ قَضٰی عَنَّا نُسُکَنَا اَللّٰهُمَّ زِدْنَا اِیْمَانًا وَّیَقِیْنًا۔ دَ احرام په وجه چه کوم څیزونه حرام شوی وُ۔ هغه ټول دَ حجامت نه پس حلال شو۔ خو ښځه ورله تر او سه پورے نه ده حلاله۔ یعنې صحبت او بوس وکنار ورله نه دے جائز۔ او که په ایام نحر کښې ئې حجامت ونکه۔ پس ئې وکه۔ نو دم به پے لازم شي۔

دَ دے نه پس دِ مکے ته راشي۔ دپاره دَ طواف زیارت۔ دَ ذی الحجې په لسم تاریخ طواف زیارت کول غوره دی۔ ورنه وخت ئې د دولسم تاریخ نور پریوتو پورے دے۔ او دا طواف فرض دے۔ که مخکښې ئې په طواف قدوم پسے سعي نه وه کړے۔ نو په طواف زیارت کښې دے په اولو دریو پیرو کښې رمل هم وکي۔ او که دَ احرام کپړے ئې ایستلي۔ او کنهٔ ئې جامے ئې اغوستے وے۔ نو اضطباع دِ نکوي۔ ورنه وُ دِ کي۔ دَ طواف نه پس دے دَ طواف مونځ وکي۔ نو دَ حجر اسود دَ استلام نه پس دے په باب الصفا دروازه وځي۔ سعي دِ وکي۔ او که دَ طواف قدوم سره ئې سعي کړے وه۔ نو په طواف زیارت کښې دے رمل او اضطباع نه کوي۔ او سعي دِ هم نه کوي۔ خو دَ طواف نه پس دے راشي۔ منیٰ ته۔ شپه دِ په منیٰ کښې تیره کي۔ دَ طوافِ زیارت نه پس ورله دَ ښځې سره صحبت وغیره حلال شه۔

په یولسم تاریخ دِ دَ زوال نه پس دَ دریواړو جمراتو رمی وکی ۔ سنت طریقه داده ۔ چه
مینه اول څلے اوولی ۔ کوم ته چه جمرهٔ اولیٰ وائی ۔ بیا میننځنۍ بیا اخرئ ۔ دجمرهٔ اولیٰ
رمی چه وکی ۔ نو لږ مخکښ دِ په نرمه زمکه کښ مخ په قبله شی ۔ لاسونه دے اوچت
کی ۔ دعا دِ وکی ۔ تسبیح تهلیل او دعا دِ دَ یروقته پورے وکی ۔ دارنګ دجمرهٔ وسطیٰ دَ
رمی نه پس دِ هم دعا وکی ۔ او دَ جمرهٔ اخرئ دَ رمی نه پس دِ دُعا نه کوی ۔ بلکه د رمی نه
پس دِ سمدستی راشی ۔ خپل مقام له ۔ په دولسم تاریخ دِ هم دَ زوال نه پس دارنګ
دَ دریوَ واړو څلو رمی وکی ۔ د دولسم تاریخ دَ رمی نه پس مکے له تلے شی ۔ خو غوره داده
چه په دیارلسم تاریخ هم دَ زوال نه پس دَ دریواړو جمراتو رمی وکی ۔ بیا دے ځی مکے له
چه دَ منیٰ نه په دولسم یا په دیارلسم تاریخ مکے له راځی نو په ډیره عاجزئ سره دے
راځی ۔ وادیٔ محصب دَ منیٰ په لارے کښ مکے ته نژدے واقع دے ۔ هلته دِ دَ ماسپښین ماز ګر
ماښام ماسختن مونځ وکی ۔ بیا دِ لږ څملی ۔ دَ هغے نه پس دے مکے له راشی ۔ او که په وادیٔ
محصب کښ دومره ساعت نشه حصاریدے ۔ نو لږ دِ حصار شی ۔ اګر که دَ سورلئ نه په
کوزیدو سره وی ۔ یا دَ سورلئ په ودرولو سره ۔ بس څه وشه ۔ دکوے پورے چه ئے خوښه
وی ۔ په مکه معظمه کښ دے قیام وکی ۔ او طواف او عمره دِ کوی ۔ لیکن عمره دے دَ دیارلسم
تاریخ نه پس کوی ۔ او کوم وقت چه ئے دَ مکے شریفے نه دَ روانیدو اراده وکړه ۔ نو طوافِ
وداع دِ وکی ۔ یعنے دَ رخصت کیدلو طواف ۔ داطواف واجب دے ۔ که بے ددے نه لاړ
شه ۔ نو که دَ میقات نه او ونه وت ۔ وس ئے خوښه ده ۔ که دم ورکوی ۔ او که احرام تړی
نو اول عمره کوی ۔ بیا طواف وداع ۔ لیکن دَ طوافِ زیارت نه پس که ئے نفل طواف
کړے وُ ۔ نو هغه طوافِ وداع شه ۔ اګر که نیت ئے نه وُ کړے ۔ خو غوره داده ۔ چه
خاص دَ مکے نه دَ رخصتیدو په وقت ئے وکی ۔ دَ طوافِ وداع نه پس به دَ طواف دوه
رکعته دَ مقام ابراهیمؑ څخه وکی ۔ بیا به راشی چاهِ زمزم له ۔ نو مخ په قبله به تے په
ولاړے په دړے اینده کښ او به وسکی ۔ چه موړ شی ۔ او په هره اینده دے
خانه کعبے ته نظر کوی ۔ او دَ سکلو په وقت کښ دے دا دعا لولی بِسْمِ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ
لِلّٰهِ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ ۔ او په آخری پیره دِ وائی :۔ اَللّٰهُمَّ
اِنِّیْ اَسْئَلُكَ عِلْمًا نَافِعًا وَّرِزْقًا وَّاسِعًا وَّشِفَاءً مِّنْ كُلِّ دَاءٍ ۔ او څه او به دِ
سر او په مخ او په نور بدن ونولی ۔ بیا دِ راشی ملتزم ته ۔ سینه او ښے انګلے دے دَ
کعبے شریفے په دیوال کیدی ۔ او ښے لاس دِ دَ دروازے درشلے طرف ته اوچت کی ۔ او

څه رنګ چه مرئ دَخپل مولٰی لمن نیولی وی - په ډیره عاجزئ سره تے دَخپلو تقصیراتو معافی غواړی - دارنګ دِدَکعبے شریفے پرده نیوے په ژړا انګولا دَډیر ساعت پورے په استغفار تسبیح تهلیل او په درود او دعاګانو مشغول شی - که ځړانه ورتله نو په زور دِ ځان ځړغونے کی - بیا دے درشل ښکل کی - او دا دعا دِ او غواړی - بیا دِ دَ حجراسود استلام وکی - کعبے ته دے دَ حسرت په نظر سره ګوری - او په جُدا ایئے دَ افسوس کوی - او پښی شا دِ روان شی - نو په باب الوداع دروازه دِ اوځی - او په دروازه دے دُعا وکی - که دادُعا او سنے شی - نو غوره ده :- اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ حَمْدًا كَثِيْرًا طَيِّبًا مُبَارَكًا فِيْهِ اَللّٰهُمَّ ارْزُقْنِي الْعَوْدَ بَعْدَ الْعَوْدِ الْمَرَّةَ بَعْدَ الْمَرَّةِ اِلٰى بَيْتِكَ الْحَرَامِ وَاجْعَلْنِيْ مِنَ الْمَقْبُوْلِيْنَ عِنْدَكَ يَا ذَا الْجَلَالِ وَالْاِكْرَامِ - اَللّٰهُمَّ لَا تَجْعَلْهُ آخِرَ الْعَهْدِ مِنْ بَيْتِكَ الْحَرَامِ وَاِنْ جَعَلْتَهٗ آخِرَ الْعَهْدِ فَعَوِّضْنِيْ عَنْهُ الْجَنَّةَ يَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ وَصَلَّى اللّٰهُ عَلٰى خَيْرِ خَلْقِهٖ مُحَمَّدٍ وَآلِهٖ وَصَحْبِهٖ اَجْمَعِيْنَ - مسکینانو غریبانو له دے صدقات و خیرات ورکی - که ځج کونکے ښځه په دغه وخت کښی د حیض یا د نفاسه پاکه نه وه - نو ښځے له پکار دی چه دَ جمات نه باهر په باب الوداع ودریږی - دعا وکی - جمات ته دِ نه داخلیږی - او طواف وداع پرے نشته - لیکن که دَمکے شریفے دَ آبادے نه لا نه وه وتے - او پاکه شوه - نو واپس راتلل او طواف وداع کول پرے واجب دی -

دمیقات بیان | میقات په اصل کښی وخت معین او مکان معین ته وائی - او دحج میقات هم په دوه قسمه دے - یو زمانی دے - او دا دوه میاشتے لس ورځے دے - یعنی شوال - ذی قعده - یو میاشت لس ورځے دذے الحج - بل مکانی دے - یعنی هغه ځائے چه دَ هغے نه احرام تړل واجب دی - او دا په دریے قسمه دے - یو میقات دَ دَ اهلِ حل - یعنی په میقات کښی دننه دَ حرم شریف نه باهر چه څوک اوسی دهغوی دَ پاره - دویم میقات دے دَ اهل حرم - یعنی دَ مکے او دَ حرم اوسیدونکو دَ پاره - دریم میقات دے دپاره دَ آفاقیانو - یعنی څوک چه دَ میقات نه باهر اوسی دَ هغوی دَپاره - نو دَ اهلِ حل او دَ اهلِ میقات دَپاره دحل ټوله زمکه میقات دے - او اهلِ مکه لره دَ حج احرام تړلو دَپاره دَ حرم ټوله زمکه میقات دے - او دَ آفاقیانو میقاتونه دا دی :- (۱) دَ مدینے منورے په طرف چه راځی دَ هغوی دَپاره ذوالحلیفه (۲) دَ نجد په غاړه چه راځی دَ هغوی دَپاره قرن - (۳) دَ شام او دَ مصر دَ غاړے چه راځی دَ

هغوی دپاره جحفه - (۴) د عراق په طرف چه راځی د هغوی دپاره ذات عرق - (۵) د یمن او د هندوستان نه چه راځی د هغوی دپاره یلملم - او د عمرے میقات د ټولو دپاره زمکه د حل ده - برابره خبره ده چه آفاقی وی او که غیر آفاقی -

**مسئله** :- که مسلمان عاقل بالغ د میقات نه باهر او سیدونکی مکے شریفے ته داخلیدل غوښته - د پاره د حج یا د پاره د عمرے یا د پاره د تجارت وغیره - او په میقات باندے بے د احرام تړلو نه واوختلو نو ګنهګار شته - وس ئے میقات ته راګرځیدل واجب شو - که راوُنه ګرځید - او د میقات نه ئے هاپله احرام وتاړه - نو دم په واجب دے او که واپس میقات ته راغے - احرام ئے د لته وتاړه - نو دم تے او غورځید -

**مسئله** :- که څوک میقات ته لا نه وُ رسیدلے - مینه ئے احرام وتاړه - نو دا هم جائز دی - بلکه د خپله کوره هم تړلے شی - بلکه غوره ده - خو هله که د احرام په جنایاتو کښ ئے د مبتلا کیدلو یره نه وه -

**مسئله** :- که مکے شریفے له په داسے لاره - چه میقات ئے مخے له نه راته - نو د میقات د محاذات نه به احرام تړی

**مسئله** :- که مکی د میقات نه باهر تلے وُ - نو چه بیا واپس راځی - نو د آفاقی شانتے په د میقات نه احرام تړل واجب دی -

**د احرام بیان** | د احرام تړلو طریقه د حج افراد په شروع کښ ذکر شوی ده - نو کوم وخت چه څادر واچوی او لنګ او وهی - او د احرام دوه رکعته نفل وکی - لکه چه مخکښ تیر شو یدی - د سلام ګرځولو نه پس دے په هغه ځائے سر نور سر مخ په قبله ناست نیت وکی - چه احرام مِنړلے دے - د حج یا د عمرے یا د دواړو - نیت په زړه سره فرض دے - او په ژبه وئیل ضروری نه دی - خو غوره دی - نو که صرف د حج د احرام نیت تړی په ژبه دے دا الفاظ د نیت هم اووائی :- اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اُرِیْدُ الْحَجَّ فَیَسِّرْهُ لِیْ وَتَقَبَّلْهُ مِنِّیْ او که صرف د عمرے نیت تړی - نو دا دِ اووائی اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اُرِیْدُ الْعُمْرَةَ فَیَسِّرْهَا لِیْ وَتَقَبَّلْهَا مِنِّیْ او که د دواړو نیت تړی - نو دا دِ اووائی :- اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اُرِیْدُ الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ فَیَسِّرْهُمَا لِیْ وَتَقَبَّلْهُمَا مِنِّیْ او که دا الفاظ نشی ویلے نو وُ دِ وائی چه یا الله ما د حج نیت کړیدے - نو ځما د پاره ئے آسان کے - او قبول ئے کے دا رنګ که اراده ئے صرف د عمرے وی یا د دواړو - نو په خپله ژبه کښ دِ اووائی - د دے نه پس دے درے ځلے تلبیه اووائی - بیا درود شریف - بیا څه دعا - او مستحبه دا ده :-

اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْئَلُكَ رِضَاكَ وَالْجَنَّةَ وَاَعُوْذُبِكَ مِنْ غَضَبِكَ وَالنَّارِ دنیت کولو او دَ تلبیه ویلو نه پس احرام وتړلے نو کوم څیزونه چه دَاحرام ممنوعات دی - وس دَ هغې نه ځان ساتی -

| دَاحرام تړلو شرائط او واجبات وغیره | دَاحرام صحیح کیدلو دپاره خاص مکان او خاص هیئت شرط نه دے نو که کنهلے جامے ئے اغوستے وے او احرام ئے وتاړه احرام صحیح |
| --- | --- |

دے - خو دا سے کول مکروه دی - نو که دَ احرام تړلو نه پس ئے هم اغوستے وے - جزابه لازمه شی - یعنے دم یا صدقه -

**مسئله** :- دَ احرام نیت کول او تلبیه ویل شرط دی - او دَ هدیه په عناړه کیښ پټه اچول او دَ هغے چلول هم دَ تلبیئے قائمقام کرځی -

**مسئله** :- که صرف دحج نیت ئے په زړه سره وکه - او تلبیه ئے ونوے - نو دا احرام درست نه دے - بلکه تلبیه ویل شرط دی - دارنګ که نیت ئے ونکه - او صرف تلبیه ئے اووے - نو په دے سره هم احرام نه کیږی - نو مطلب دا شه چه دَ احرام تړلو دپاره دامام صاحبؒ په نزد نیت او تلبیه دواړه ضروری دی -

**مسئله** :- تلبیه په ژبه ویل شرط دی - که صرف په زړه کښ ئے اووے - نو نه کافی کیږی - دَ احرام تړلو په وقت کښ یوه یېره تلبیه ویل فرض دی - او تکرار ئے سنت دے - او دَ تلبیئے کوم الفاظ چه مینه ذکر شویدی - خاص هغه ویل شرط نه دی بلکه سنت دی - هرهغه ذکر چه په هغے سره دَ خدای پاک تعظیم راځی هغه دَ تلبیے په ځاے اودریدے شی لکه لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وغیره - او تلبیه دَ عربیئ نه سوا په بله ژبه کښ هم صحیح ده - خو په عربئ کښ غوره ده -

**مسئله** :- دَ میقات نه احرام تړل - یعنے دَ میقات نه بے احرامه نه اوختیل او دَ احرام دَ ممنوعاتو نه ځان کیدل واجب دی -

**مسئله** :- دحج په میاشتو کښ احرام تړل - دَ خپل وطن دَ میقات نه احرام تړل هغه که تیریدل ئے په هغے وی - سنت دی - دارنګه غسل یا اودس کول - څادر او لنګ استعمالول ، دوه رکعته نفل کول - خاص دَ کوره تلبیه ویل - درے یېرے ویل - نارینه ئے په زوره ویل - خوشبو لګول یعنے دَ احرام دَ نیت تړلو نه مینه دا هم سنت دی -

**مسئله** :- دَ احرام نیت تړلو نه مینه دبدن صفائی دَ نوخ دَ نامه لاندې ویښته اغستل - نوکو نه پریکول - غسل کول - لنګ او څادر سپین یا نوے استعمالول - څپلئ

په خپوکول - احرام د میقات نه بهر تړل - د مانځه نه پس په ناسته احرام تړل - د احرام نیت په ژبه کول - دا ټول مستحبات دی -

مسئله :- د احرام تړلو په نیت دوه رکعته نفل کول مسنون دی - او یو د مانځه نه هم احرام تړلے شی - خو مکروه دی - لیکن که وقتِ مکروه وُ - بیا مکروه نه دی - او که ښځه وه په حالت د حیض یا په حالت د نفاس کښې - نو پس د غسل یا پس د اودس نه به د مانځه نه بغیر با قاعده احرام وتړی -

| د احرام ممنوعات وغیره | د احرام تړلو نه پس دے د ممنوعات او د مکروهات نه ځان ساتی - دکومے پورے چه د احرام نه نوی وتے - |
|---|---|

مسئله :- په حالت د احرام کښې دا کارونه منعه دی :- کښے جامے اغوستل لکه قمیص - پرتوک - ټوپئ - دستانے موزے وغیره - دا سے پټکے وغیره په خپوکول چه د خپے د مینځ هډوکے پکښې پټیږی - په سر او په مخ پټئ تړل - خوشبو لګول - چه خوشبوئے ځی لهغه جامے استعمالول - د ږیرے اغستل - نوکونه پریکول - سر یا مخ پټول - جګړه کول - ښځے ته د جماع ذکر کول - بوس وکنار وغیره - د خشکے ښکار کول یا ښکاری ته دلالت د ښکار کول - یا ورته اشاره کول - د ښکاری مدد کول - لکه غشے لیندہ یا چاکو وغیره ورکول - د خشکے ښکار زغلول - د هغه اګئے ماتول وغیره سپږے وژل - یا غرض ورته سیے اړتا وهل - یا د سپږے وژلو د پاره زړوکے غرض ته اړتا وهل - په بل باندے خپله سپږه وژله وغیره وغیره -

مسئله :- په حالت د احرام کښې دا خبرے مکروه دی :- خوشبو له لاس وروړل - قصداً خوشبو بوئیول - څادر له غوټه ورکوے په خټ تړل - څادر یا لنګ له غوټه ورکول - یا ئے په ستن یا په تار ګنډل - پوزه یا زنه په ټوکی پټول البته په لاس ئے پټول نه دی مکروه - سر یا ږیره منګزول - سر یا ږیره په دے طریقه ګرول چه د ویښته یا د سپږے غورزیدلو خوف وی - او که دا خوف نه وُ بیا خیر دے - سر یا د ږیره یا بدن په صابون اینځل - خیرے لرے کول وغیره وغیره -

مسئله :- په حالت د احرام کښې دا خبرے مباح دی - غسل کول مکان ته داخلیدل - په سوری کیناستل - چترے په ځان نیول - کوم نوک چه مات وی هغه پریکول - په آینه کښې کتل - کیړه پاکول - غوږه خوړل - لمبل په یخو اوبو دی

او که په تودو۔ خو خیر دے نه لرے کوی۔ دَ لنګ دَپاسه یالاندے همیانی تړل۔ په لنګ کښې جیب اچول۔ ځان ته وسله اچول۔ دَ سر او مخ نه سوا نور بدن پټول۔ دَ زنے لاندے بیره پټول۔ لوخے یا کټ یا بل داسے شے په سر ایښول۔ څادر یا بړستن اغوستل۔ سر په بالښ ایښودل۔ موذی حیوان وژل۔ لکه مونګنی۔ مچے۔ مار لړم وغیره۔ دا ټول جائز دی۔ او بنګ غوا میښه بیزه کوړنے چرګ ذبحه کول او دَ هغے غوښے خوړل هم جائز دی۔

**تلبیه** | دَ احرام تړلو نه پس دے خصوصًا د حالتونو دَ تبدیلئ په وقت کښې تلبیه ډیره ډیره وائی۔ لکه دَ حج افراد په بیان کښې چه تیر شوی دی۔ د فرض او دَ نفل مانځه نه پس دِ هم وائی۔ او په ایّام تشریق کښې دِ مینه تکبیر وائی۔ بیا تلبیه۔ که مینه ئے تلبیه اوو ے۔ نو تکبیرے او غورځید په مسجد حرام۔ منٰی۔ عرفات۔ مزدلفه کښې دے تلبیه وائی۔ او په طواف او سعئ کښې نه۔ په حج کښې تلبیه درمی کولو دَ وقت پورے ویلے شی۔ کوم وقت چه دَ جمره عقبه رمی شروع کی۔ تلبیه دے بنده کی۔ دَ هغے نه پس دِ نه لولی۔ برابره خبره ده چه مفرد وی او که قارن او که متمتع۔ او په عمره کښې دَ طواف پورے یعنے دَ ړومبی اِستلام پورے ویلے شی۔ او دَ نارینه دَ پاره تلبیه په زوره ویل سنت دی۔ خو دومره په زوره نه چه ځان ته یا نمازیانو ته تکلیف رسوی او ښځے دَ پاره په زوره ویل منع دی۔ داسے دِ وائی چه اجنبی سړے ئے نه آوری۔ صرف په خپله ئے آوری۔

**د طواف اقسام** | په حج کښې درے طوافونه دی۔ یو طواف قدوم دے۔ دے ته طواف الورود او طواف تحیه هم وائی۔ دا دے طواف اول وقت په مکه کښې دَ داخلید و اول وقت دے۔ دا دَ هغه آفاقی دَ پاره مسنون دے چه هغه حج افراد کوی۔ یا قران۔ او څوک چه صرف عمره کوی یا تمتع۔ دَ هغه دَ پاره نه دے مسنون۔ او دَ مکے دَ اوسیدونکی دَ پاره هم نشته۔ لیکن که دے دَ میقات نه باهر تلے وَ۔ په والپسئ کښې ئے دَ افراد یا دَ قران نیت وتاړه۔ بیا ورله مسنون دے۔

دویم طوافِ زیارت دے۔ او دے ته طوافِ فرض او طوافِ حج او طوافِ رکن هم وائی۔ دا د حج رکن دے۔ دلسم ذے الحجے دَ صبح صادق نه پس د دولسم تاریخ پورے په دے مینځ کښې ئے څه وقت کول واجب دی۔ او دَ دے طواف نه پس سعئ هم شته خو هله که په طواف قدوم پسے ئے سعئ نه وی کړی۔ او که کړے ئے وه۔ نو په طواف زیارت کښې به نه رمل کوی۔ او نه دَ دے طواف نه پس سعئ۔

دریم طواف صدر دے۔ او دے ته طواف وداع هم وائی۔ یعنی د بیت الله نه د رخصت کیدلو طواف۔ دا په آفاقی باندے واجب دے۔ او د مکے په اوسیدونکی نه دے واجب۔ په دے طواف کښې رمل او اضطباع هم نشته۔ او روستو ئے سعئ هم نشته۔ مذکوره درے واړه طوافونه په حج پورے خاص دی۔

او په عمره کښې صرف یو طواف دے۔ هغې ته طواف عمره وئیلے شی۔ هغه په عُمره کښې فرض دے۔ په دے کښې رمل او اضطباع شته۔ او روستو ئے سعئ هم شته۔

د مذکوره طوافونو نه علاوه درے قسمه طوافونه نور هم دی۔ طوافِ نفل۔ طوافِ نذر۔ طوافِ تحیه۔ نفل طواف هر وخت کولے شی۔ او طوافِ نذر په هغه چا واجب دے چه طوافِ نذر ئے منلے وی۔ او طواف تحیه مسجد حرام ته د داخلیدونکی د پاره مستحب دے۔ لیکن که بل څه طواف ئے وکه۔ نو هغه به د دے طواف قائم مقام وګرځی۔

**د طواف شرائط او واجبات وغیره**

اِسلام۔ نیت د طواف۔ په مسجد کښې دننه طواف کول۔ دا درې واړه د هر طواف د پاره شرط دی۔ او د حج د طوافونو د پاره د دینه علاوه درے شرائط نور هم شته۔ یعنی خاص وخت۔ او د طواف نه مخکښې د احرام۔ او د وقوف عرفه شته والے۔

**مسئله**:۔ د طواف واجبات اوه دی۔ (۱) د لوئے بے اودسئ او د وړے بے اودسئ نه پاکوالے۔ (۲) ستر د عورت۔ (۳) طواف د ښی طرف نه شروع کول۔ (۴) طواف پیاده کول که عذر نه وی۔ (۵) حطیم په طواف کښې راوستل۔ (۶) طواف پوره کول۔ یعنی د طواف اکثره حصه کول رکن دے۔ او د هغې نه زیات واجب۔ (۷) د طواف نه پس دوه رکعته مونځ کول خو بعضے عالمان دا اووم د طواف په واجباتو کښې نه شماری۔ بلکه ځان له ئے ذکر کوی۔ او بعضے عالمانو د طواف په واجباتو کښې د حجر اسود نه طواف شروع کول هم بیان کړیدی۔ لیکن ظاهر الروایت او د اکثرو عالمانو قول دا دے چه د حجر اسود نه طواف شروع کول سنت دی د واجباتو حکم دا دے چه یو واجب که ترک کړے شه۔ نو د طواف اعاده واجبه ده۔ که اِعاده ئے ونکړه نو جزابه واجبه شی۔

**مسئله**:۔ د نجاست حقیقی نه د بدن او د جامو پاکوالے۔ د طواف په شروع کښې حجر اسود ته مخ کول۔ د حجر اسود ته مخ کول۔ د حجر اسود استلام۔ اضطباع۔ په اولو درې پیرو کښې رمل کول په باقی کښې نه کول۔ څوک چه طواف نه پس سعئ کوی۔ هغه له د

طواف او دَ سعئ په مینځ کښې استلام - حجرِ اسود ته مقابل والاړ دَ تکبیر په وخت کښې دواړه لاسونه دَ تکبیر تحریمه په شان اوچتول. دَ طواف او دَ سعئ وانړه پیرے مسلسل کول - دا ټول سنت دی -

**مسئله** :- طواف دَ حجرِ اسود څخه دَ ږے نه په دے طریقه شروع کول چه دَ طواف کونکی بدن دَ حجرِ اسود په مخکښې دَ تیریدو په وخت کښې محاذی تیرشی. حجرِ اسود دریځه ښکلول - او دریځه پے سجده کول - مباح خبرے ترک کول. منقولے دعاګانے لوستل - کوم کارچه په خشوع کښې مخل وی - هغه نه کول - نارینه له بیت الله ته قریب طواف کول. ښځے له دَ شپے طواف کول - که طواف ئې په مینځ کښې پریخے وی - یا ئې په مکروه طریقه کړے وی - هغه بیا دَ سره کول - په طواف کښې د بیت الله پښته راوستل - درکن یمانی استلام - دا ټول د طواف مستحبات دی -

**مسئله** :- حجرِ اسود ته دَ زرو کومه حلقه چه لګیدلے ده - د استلام په وخت کښې څینے خلق هغے له لاس وروړی - حال دا دے چه دا نه دی جائز - دا رنګ د طواف کولو په وخت کښې دَ استلام دوخت نه علاوه بیت الله ته مخ کول منعه دی - او دَ استلام په وخت کښې هم دواړه خپے په خپل ځائے لرل - اولیس دَ استلام نه بیخ وردیال - او طواف با قاعده کول پکار دی -

**مسئله** :- په کوم طواف پسے چه سعئ نه وی - په هغه طواف کښې رمل نشته - او په کوم طواف پسے چه سعئ وی - د هغه طواف په اولو درے پیرو کښې رمل شته - لیکن که دَ زورولی یا دَ مرض په وجه ئې رمل ونکه باک نه لری - او دَ طواف په او دَ وانړو پیرو کښې رمل کول مکروه دی -

**مسئله** :- په طواف کښې بالکل خاموش اوسیدل هم جائز دی - او دعا لوستل یکښې د قرآن لوستلو نه غوره دی -

| دَ سعئ شرائط او واجبات وغیره |
|---|

دَ سعئ شرائط پنځه دی - اول دا چه دَ سعئ کولو نه مینه ئې د حج یا دَ عمرے احرام تړلے وی - نو که چا دَ احرام نه مینه سعئ وکړه - هغه صحیح نه ده -

**دویم** شرط دا دے چه سعئ په خپله وکی - اګر که بل انسان اوچت کړے وی - یا په آس وغیره سوروی - نو په سعئ کښې نیابت نه دے جائز - البته که دَ احرام نه مینه څوک بے هوشه شه - بیائے بے هوشی دَ سعئ دَ وخت پورے باقی وه - نو دَ

هغه دَ طرفه بل سر ته سعئ کولے شی۔

دریَم شرط دادے۔ چه سعئ دَ پوره طواف یا دَ اکثر طواف نه پس وی۔ اگرکه نفلی طواف وی۔ نوکه چا طواف بالکل نهٔ وی کړے۔ یا شروع کړے ئے وُ۔ خو څلور پیرے ئے نه وے پوره کړے۔ او سعئ وکړه۔ نو دا سعئ صحیح نه ده۔ اوکه څلور ئے پوره کړے وے۔ پس دَ هغې نه ئے سعئ وکړه نو صحیح ده۔

څلورم شرط سعئ په خپل وقت کښې کول دی۔ خو دا شرط دَ حج دَ سعئ دپاره دے۔ دَ صرف عُمرے دَ سعئ دپاره نه دے۔ هاں که قارن او متمتع عمره کوله۔ نو دَ هغه دَ عمرے دَ سعئ دپاره هم دا وقت شرط دے۔ نوکه یو سړی دَ حج احرام وتاړه۔ او دَ حج دَ میاشتو نه ئے مخکښې سعئ وکړه۔ نو صحیح نه ده۔ اوکه دَ حج دَ میاشتو په ختم ئے سعئ وکړه پس دَ طواف زیارت نه نو صحیح ده۔ ځکه چه دَ حج دَ سعئ وقت دادے۔ چه دَ حج میاشتے شروع شوے وی۔ دا نهٔ چه په دغه میاشتو کښې دننه وی۔

پنځم شرط دادے چه دَ سعئ ابتداء دَ صفا نه وکی۔ او اختتام ئے په مروه وکی۔ نو که ابتدائے دَ مروه نه وکړه۔ نو دا پیره ئے حساب نه ده۔ دَ صفا نه چه مروه ته روانیږی هله به شروع کیږی۔

**مسئله** ۱۔ سعئ دَ صفا مروه په مینځ کښې کول رکن دے۔ نوکه دَ دے دواړو په مینځ کښې ئے ونکړه۔ بل ځائے ئے وکړه۔ هغه نه کیږی۔ او دَ سعئ په اوو پیرو کښې اکثره حصه کول یعنے څلور پیرے کول هم رکن دے۔ لیکن په دے اخیری کښې اختلاف شته بعضے ورته رکن وائی۔ او بعضے شرط۔

**مسئله** ۱۔ دا امور دَ سعئ واجبات دی۔ (۱) سعئ پیاده کول۔ نوکه څه عذر نه وُ۔ او سعئ په سورلئ وکړه۔ دم لازم دے۔ (۲) سعئ دداسے طواف نه پس کول۔ چه هغه دَ جنابت او دَ حیض ونفاس نه دَ پاکوالی په حالت کښې کړے شوے وی۔ او دَ سعئ دپاره دا پاکوالے شرط او واجب نه دے۔ بلکه مستحب دے۔ (۳) سعئ دَ صفا نه شروع کول او په مروه ختمول۔ (۴) اووه پیرے پوره کول۔ یعنے څلور پیرے فرض دے۔ باقی درے واجب۔ نوکه چا درے پیرے پریخودے۔ سعئ به وشی۔ لیکن دَ یوے یوے پاتے شوے پیرے په بدله کښې به دَ صدقهٔ فطر په مقدار صدقه ورکول واجب دی۔ (۵) دَ صفا او مروه په مینځ کښې پوره مسافت قطع کول۔ یعنے دَ صفا سره ژر ټینګے په یو ځائے کولو یا دَ صفا دَ پاسه په ختلو سره شروع کول۔ او دَ مروه سره دَ ځپے

دَ څوتو په ملا وولویا دمروه دپاسه په ختلو سره ختمول - (۶) دعمرے په سعۓ کښې دسعۓ دآخره پورے دَ احرام باقي والے -

**مسئله** :- (۱) دَطواف نه پس سمدستي سعۓ کول - (۲) دَ حجرِ اسود استلام چه دکی - دَ سعۓ دپاره دَ جماعت نه وتل - دَ لوئے بے او دسۓ نه پاکوالے - (۴) سعۓ دداسے طواف نه پس کول چه هغه ئے دَ لوئے بے اودسئ او دَوړے بے اودسۓ نه دَپاکوالي په حالت کښې کړے وی په داسے حال کښې چه جامه بدن او دَطواف ځلے هم پاک وَ - (۵) په صفا مروه باندے ختل (۶) په صفا مروه باندے مخ قبلے ته کول - (۷) دسعۓ پیرے پے درپے کول - (۸) دَ میلین اخضرین په مینځ کښې په دوَ تلل - دا ټول دَ سعۓ سنن دی -

**مسئله** :- دا خبرے دَ سعۓ مستحبات دی :- (۱) دَ سعۓ نیت کول - (۲) په صفا او په مروه باندے پوره ساعت حصاریدل - (۳) ذکر او دُعا دَ درے پیرے لوستل (۴) دسعۓ دَ فراغت نه پس چه مسجد ته راشی - دوه رکعته نفل کول - (۵) که دَ سعۓ په پیرو کښې بے دَ عذر نه ډیره فاصله راغله نو بیا دَ سره کول - خو سعۓ دَ سره شروع کول هله مستحب دی - که دَ ټیے نه زیاتے پیرے نه وی شوی -

**مسئله** :- که دَطواف قدوم نه پس ئے سعۓ نه وه کړے - او وقوف دعرفے ئے وکه - نو وس دَطواف زیارت نه مینه ورله سعۓ نه ده جایُزه - بلکه سعۓ دے دطواف زیارت نه پس وکی -

| دَ وقوف عرفے شرائط وغیره | (۱) اسلام - (۲) دَحج صحیح دَ احرام شته والے - (۳) وقوف په خپل وقت کښې کول - یعنے دَ نهم ذے الحجے دَ زوال نه دَ لسم تاریخ دَ صبح صادق پورے |
|---|---|

څه وخت وقوف کول - (۴) وقوف په عرفات کښې کول - دا دَ وقوفِ عرفے دَ صحت دَ پاره شرائط دی -

**مسئله** :- په نهم ذی الحجه دَ زوال نه پس دَ نور پریوتو پورے په عرفات کښې حصاریدل واجب دی - نو که دَ نور پریوتو نه مینه دَ عرفات دحد نه باهر او وت دم به واجب شی - لیکن که دَ نور پریوتو نه مینه بیا واپس راغے - نو دم به او غورځیږی او په عرفات کښې وقوف کیدل اگر که یو منټ وی - او په هر طور چه وی - دا رکن دے نو که دَ وقوف په مذکوره وقت کښې دَ یو منټ دَپاره ئے هم عرفات ته دخول وُنشه - نو وقوف و نشه - او دَ وقوف دَ صحت دَپاره دَ حدث اکبر نه پاکوالے شرط نه دے -

**مسئله** :- دوقوف دپاره غسل کول - امام له دَ زوال نه پس دَ دواړو دَ مونځونو

نه مینه خطبه ویل - دواړه مونځونه جمع کول - په ماښځه پسې سمدستی وقوف کول - دَ عرفات نه دَامام سره روانیدل - دا ټول دَ وقوف سنن دی - اوکه دَ ګڼړې دَخوف په وجه دَ غروب نه پس دَ امام نه ورمبیه روان شه هم خیر دے -

**مسئله** :- دوقوف نیت کول - خشوع، خضوع - مخ په قبله ودریدل - په کثرت سره تلبیه - تکبیر - تسبیح - تهلیل - دعا استغفار - درود - قرآن کریم لوستل - امام ته نزدے او دَ هغه شانه ودریدل - دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ وقوف ځائے ته نژدے وقوف کول - دَ زوال نه مینه دوقوف تیارے - طهارت - په غرمو کښ ودریدل - لیکن که عذر وُ بیانه - دَ دعا دَ پاره لاسونه اوچتول - درے پیرے دعاویل - دعا په ثنا او په درود سره شروع کول، او ختمول وغیره وغیره دَ وقوف مستحبات دی -

| دَ ښځے احکام |
|---|

دَ ښځے احکام په شان د نارینه دی - خو ښځے له دَ احرام په حالت کښ هغه ځائے استعمالول جائز دی - برابره خبره ده - چه ساده وی اوکه رنګینے - لیکن که په خوشبو رنګ وے - نو هغه به نه استعمالوی چه ښے اینکے شوی وی - خوشبوئے بالکل تللے وی او کالی اچول ورله جائز دی - خو نه اچول غوره دی -

**مسئله** :- ښځے له په حالت دَ احرام کښ سر پټول واجب دی - او په مخ کپړه اچول منع دی او چونکه دَ اجنبی سړی نه ورله پرده هم ضروری ده - لهذا د تندی نه بره دِ څه اوچت شے وتړی - بیا دے پے دَ پاسه رومال وغیره واچوی - یا جالئے چه په مخ ئے نه لګی -

**مسئله** :- ښځے له په حالت دَ حیض کښ ټول افعال دَ حج کول جائز دی - خو طواف ورله منع دے - او که دَ احرام نه مینه ورله حیض راغے نو غسل دِ وکی - احرام دے وتړی - افعال حج دِ ټول وکی - خو طواف او سعئے نه -

**مسئله** :- ښځه به په طواف کښ اضطباع او رمل نه کوی - او په سعئے کښ ورله دَ میلین اخضرین په مینځ کښ زغاسته هم نشته - بلکه په خپل رفتار به ځی - او په ازدحام کښ به حجر اسود نه ښکلوی - بلکه لاس به پے هم نه لګوی - دَ طواف دوه رکعته به هم په ګڼړه کښ دَ مقام ابراهیم شاته نکوی - او دَ خلقو په ګڼړه کښ به په صفا مروه باندے ښیچی هم نه

| دَ حج فرائض وغیره |
|---|

په اصل کښ دَ حج فرض درے دی - یو احرام تړل - یعنے په زړه سره دَ حج نیت کول او تلبیه ویل - **دویم** په عرفات کښ وقوف - یعنے دَ نهم ذی الحجے

دَ زوال نه پس دَ لسم ذی الحجے دَ صبح صادق پورے څه وقت په عرفات کښں حصاد یدل ۔ اکر که دَ لږ ساعت دپاره وی ۔

دریم طواف زیارت ۔ کوم چه دَ ذی الحجے دَ لسم تاریخ دَ صبح صادق نه دولسم ذی الحجے پورے په دے مینځ کښں دَ سر خریلو نه یا دَ تقصیر نه پس کیږی ۔ ددے دریو واړو فرضونه که یو پریخودے شی نوحج صحیح نه دے ۔ اودَ هغې تلافی په دم سره یعنی په قربانئ وغیره سره نشی کیدے ۔

**مسئله** :۔ مذکوره دریواړه فرض ترتیب وارکول او هریو فرض په خپل خپل وقت کښں کول واجب دی ۔ دارنګ دَ عرفے دَ وقوف نه مینه دَ جماع ترک هم واجب دے ملحق دے دَ فرضو سره ۔

**مسئله** :۔ دحج دوه رکنه دی ۔ یو وقوف دعرفے ۔ بل طوافِ زیارت ۔ په دے دواړو کښں وقوف دعرفے رکنِ قوی دے ۔

**مسئله** :۔ دحج واجبات شپږ دی ۔ (۱) په مزدلفه کښں دوقوف په وقت حصادیدل ۔ (۲) دَ صفا مروه په مینځ کښں سعئ کول ۔ (۳) رمی دَ جمراتو ۔ (۴) دَ قارن اودَ متمتع دَ پاره قربانی ۔ (۵) حلق یعنی سر خریل یا تقصیر یعنی لږ شے پریکول ۔ (۶) دَ آفاقی دَ پاره طواف وداع ۔

او په بعضے کتابونو کښں ئے دحج واجبات زیات راوړی دی ۔ خو هغه په اصل کښں براهِ راست دحج واجبات نه دی ۔ چینے په کښں دَ احرام دی ۔ چینے د طواف وغیره ۔ لکه چه مینه تیر شوی دی ۔ دواجباتو حکم دادے چه ددے نه که یو پریخودے شه قصداً یا په هیره نوحج وشه ۔ خو جزا لازمه ده ۔ یعنی قربانی یا صدقه ۔ هاں که دَ معقول عذر په وجه پریخودے شه ۔ نو جزانه ده لازمه ۔

**مسئله** :۔ داکارونه په حج کښں سنت دی ۔ (۱) کوم آفاقی چه حج افراد کوی ۔ یا قران ۔ دَ هغه دَ پاره طواف قدوم ۔ (۲) په طواف قدوم کښں رمل کول ۔ اوکه په دے کښں ئے ونکه ۔ نو په طواف زیارت اوطوافِ وداع کښں رمل کول ۔ (۳) په دریے مقاماتو کښں دامام خطبه لوستل ۔ یعنی په اووم ذی الحجے په مکه شریفه کښں ۔ په نهم تاریخ په عرفات کښں یعنی په مسجد نمرہ کښں مینه دَ جمع بین الصلوتین نه ۔ او په یولسم تاریخ په منیٰ کښں ۔ (۴) دَ نهم ذی الحجے شپه په منیٰ کښں تیرول ۔ (۵) په نهم ذی الحجه دَ نور ختو نه پس د منیٰ نه عرفات ته تلل ۔ (۶) دَ عرفات نه دَ امام د تللو نه پس تلل ۔

(۷) دَ عرفات نه په واپسئ کښې په مزدلفه کښې شپه تېرول - (۸) په عرفات کښې غسل کول - (۹) دَ منیٰ په ورځو کښې د شپې په منیٰ کښې اوسیدل - (۱۰) دَ منیٰ نه په واپسئ کښې په محصّب کښې حصار یدل اگرکه لږ ساعت وی - دَ دے نه علاوه دحج دپاره نور هم ډیر سنن دی - دسنت حکم دا دے چه په کولو کښې ئے ثواب دے - او په نه کولو کښې ئے جزا نشته - او بلا عذره ئے پریخودل بده خبره ده -

دعمرے بیان | عمرے ته حج اصغر وئیلے شی - عُمره په لغت کښې زیارت کولو ته وائی - او په شریعت کښې دَ میقات نه یا دَحل نه احرام تړل - او د بیت الله شریف طواف اوُ صفا مروه سعئ ته وائی - نو په عمره کښې دوه فرض دی - یو احرام بل طواف - اوُ صفا مروه په مینځ کښې سعئ کول - اوُ سر و یخته خریل یا تے پریکول دَ عمرے واجبات دی - باقی دَ عمرے شرائط اوُ احرام احکام په شان دحج دی - خو په حج او په عمره کښې په دے خیرو کښې فرق دے - (۱) دَ عمرے میقات دَ ټولو دپاره حل دے - هاں که آفاقی دَ باهر نه راغے - اراده ئے دَ عمرے وه - نو دخپل میقات نه به احرام تړی - اوُ اهل مکے دپاره دَ حج احرام دَ حرم نه تړل دی - (۲) حج فرض دے عمره فرض نه ده - او په دے کښې اختلاف دے چه عمره واجب ده که سنت - خو غوره قول دا دے - چه په عمر کښې یوه پیره عمره کول بشرط استطاعت سنت دی (۳) دَ حج دپاره خاص وقت معین دے - او عمره ټول کال کیدے شی - صرف پنځه ورځے یعنی دَ نهم ذی الحجے نه دیارلسم پورے مکروه ده - (۴) په عمره کښې وقوفِ عرفه - وقوفِ مزدلفه او جمع بین الصلوٰتین - او خطبه نشته - او طواف قدوم او طوافِ وداع یکښې هم نشته او په حج کښې شته - (۵) په عمره کښې دَ طواف شروع کولو په وقت کښې تلبیه بندیږی او په حج کښې دجمرهٔ اخریٰ دَ رمی شروع کولو په وقت کښې (۶) که عمره ئے فاسده کړه - یائے په حالت دجنابت کښې طواف وکه - نو بیزه خیراتی ذبحه کول کافی دی - او په حج کښې کافی نه دی -

دَ عمرے طریقه داده چه دَ عمرے دَ میقات نه دَ حج دَ احرام په شان احرام اوتړی - بیا مکے شریفے ته دَ داخلیدو په وخت کښې هغه آداب ملحوظ لری - کوم چه مخه بیان شو بیا مسجد حرام ته دِ داخل شی په باب السلام او بعضے وائی چه په باب العمرة - بیا دِ دَ رمل اوُ داضطباع سره طواف وکی - اوُ حجر اسود دَ اول استلام سره دِ تلبیه بنده کی - دَ طواف نه پس دے دوه رکعته وکی - بیا دِ دَ حجر اسود دَ استلام نه پس په باب الصفا اوځی - دحج دَ سعئ په شان دِ

سعئ وکی۔ دَ سعئ ختمولو نه پس دِ دوه رکعته نفل دَ مطاف په غاړه وکی۔ پس عمره وشوه۔

**دقران بیان** قِران په لغت کښې دوه څیزونه یو ځائ کول دی۔ او د شریعت په اصطلاح کښې دَ حج او دَ عمرې احرام یو ځائ تړل۔ بیا حج او عمره په شریکه کول دی۔ دقران طریقه داده چه دَ حج په میاشتو کښې په میقات کښې یا میقات ته د رسیدو نه مینه چه دَ غسل وغیره نه فارغ شی داحرام جامې واغوندی۔ دوه رکعته نفل با قاعده وکی۔ دَ سلام ګرځولو نه پس د سرتور سرمخ په قبله ناست په زړه کښې د حج او د عمرې دواړو نیت وتړی۔ او په ژبه دِ اووائی اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اُرِیْدُ الْعُمْرَةَ وَالْحَجَّ فَیَسِّرْهُمَالِیْ وَتَقَبَّلْهُمَا مِنِّیْ بیا دے تلبیه اووائی اَللّٰهُمَّ لَبَّیْکَ اِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ لَکَ وَالْمُلْکَ لَاشَرِیْکَ لَکَ بیا دے په دویمړی تلبیه اووائی۔ لَبَّیْکَ بِحَجٍّ وَّعُمْرَةٍ اَللّٰهُمَّ لَبَّیْکَ الخ

دَاِحرام احکام ئ په شان دَ افراد دی۔ اوکوم احکام چه په قِران پورے خاص دی هغه به دَ راتلونکی بیان نه ظاهر شی۔

په مکه شریفه کښې دے دَ داخلیدو نه پس سره دَ نن کوره آدابو په باب السلام دروازه ننوځی۔ نو مینه دِ د عُمرے طواف وکی۔ سره دَ رمل او سره دَ اضطباع۔ دَ طواف نه پس به دوګانهٔ طواف وکی۔ نو دَ آب زمزم دَ فراغت نه پس به دَ حجرِ اسود اِستلام وکی۔ بیا به په باب الصفا اوځی۔ دعمرے دپاره به سعئ وکی۔ دَ سعئ نه پس دعُمرے کارونه ختم شو۔ خو دَ دے سعئ نه پس به حجامت نه کوی۔ ځکه چه دَ حج احرام ئ هم تړلے دے۔ نو د سعئ نه پس دے سمدستی یا پس دَ څه ساعت نه او دَ وقوف عرفه نه مینه طواف قدوم وکی۔ دریمے که ئ دَ حج سعئ هم کوله۔ نو په طوافِ قدوم کښې به رمل او اضطباع وکی۔ کنی نو نه۔ لیکن دقارن دَ پاره غوره داده۔ چه سعئ به طوافِ قدوم پسے وکی۔ اوکه په طوافِ قدوم پسے ئ سعئ ونکړه۔ نو سعئ به دَ طوافِ زیارت نه پس کوی۔

نو دَ عمرے او دَ طوافِ قدوم نه چه وزګار شی۔ دغه شان احرام تړلے دِ په مکه شریفه کښې قیام وکی۔ بیا دِ په اتم ذی الحجه لاړشی منیٰ له۔ په نهم عرفات له۔ دمنیٰ عرفات۔ مزدلفے احکام هغه دی۔ کوم چه په افراد کښې ذکر شوی دی۔ فرق په کښې نشته۔ بیا دِ په لسم تاریخ راشی منیٰ له۔ صرف دَ جمرهٔ آخری رمی دِ وکی۔ بیا ذے دَ قِران په شکریه کښې قربانی وکی۔ دا قربانی واجب ده۔ دَ دمِ قِران او دَ دمِ تمتع په ځائے دعید الاضحیٰ قربانی نشی قائمیدے۔ او دَ اختر قربانی په مسافر واجبه نه ده۔ البته

که څوک د حج نه مينه مکې ته رسيدلے وي - او د پيمه مياشتې د اقامت نيت ئے کړے وي - نو په
هغه باندے د اختر قربانۍ هم واجبه ده - بيا دے حجامت وکی - حلق يا قصر - نو د احرام
په حالت کښې چه کوم مباح څيزونه ورله منع وو - هغه ورله حلال شو - سوا د صحبت
او د بوس وکنار نه - د دے نه پس غوره داده - چه مکې ته په لسم تاريخ لاړ شي - طواف زيارت
وکی - ورنه د دولسم ذی الحجې د نمر پريوتو نه مخکښې ئے کول ضروری دی - د طواف
زيارت نه پس د راشی منی له - په يولسم دولسم دے د زوال نه پس د دريو اړو جمراتو
رمی وکی - او که په ديارلسم تاريخ هم په منی کښې وو - نو بيا دے هم د دريو واړو جمراتو رمی کی
او که په دولسم تاريخ مکې له تله غواړی نو لاړ شی - د منی نه چه مکې شريفې ته راځی - نو که کيدے
شوه - په لارے کښې د په وادی محصب کښې د ماز يګر ماښام ماسخوتن مونځ وکی - د لسم
آلام نه پس د حجی مکې له - بيا د مفرد په شان طواف وداع وکی - پس حج قران ئے وشه -

| د تمتع بيان | تمتع په لغت کښې فايدے اغستلو ته وائی - او د شريعت په اصطلاح کښې

دے ته وائی چه د عمرے احرام ئے لا نه وی مات کړے - بلکه برحال وی - او د حج احرام
و تړی - خو هله که هدی ورسره وه - يا د حج په مياشتو کښې عمره - يا د عمرے اکثر طواف
وکی - بيا حلال شی - او وطن ته د تلو نه مخکښې د حج احرام و تړی - خو هله که هدی ورسره
نه وه - د دے قسم نه د تمتع د بيلو وجه داده چه د تمتع کوونکے د عمرے د احرام او د حج د
احرام په مينځ کښې د هغه څيزونو نه فايده اغستے شی - کوم چه د احرام په وجه منع
وی - او قارن داسے نه دے - ځکه چه هغه پس د عمرے د فراغت نه هم محرم وی
او د هغه څيزونو نه فايده نشی اغستے - د تمتع درجه د قران نه کمه ده - او د افراد
نه لويه -

د تمتع طريقه داده چه اول د عمرے احرام و تړی - د حج په مياشتو کښې عمره
وکی - د عمرے نه پس سر وخرئی - حلال شی - ليکن هله که هدی تمتع ئے ځان سره
نه وی راوستے - او د حلال کيدو نه پس دے په مکه کښې يا بل ځائے قيام وکی - نو وطن
ته دے نه ځی - نو کوم وخت چه د حج وقت راشی - احرام و تړی د حج - نو مطلب دا شه
چه عمره او حج دواړه په يو سفر کښې وکی - د دواړو په مينځ کښې وطن له لاړ نه شی -
دا رنګ په يو کال کښې د ئنه کول ئے هم ضروری دی نو چه د حج احرام و تړی - حج
کوی - په اتم تاريخ لاړ شی منی له - د ماسپخين ، ماز يګر ، ماښام ، ماسخوتن او
د سحر مونځ په منی کښې وکی - د شپے هلته دی - په نهم تاريخ د نمر ختو نه پس

لاړشي عرفات له. د زوال نه غروب پورې وقوفِ عرفه وکي. د لسم تاریخ شپه نیوه کي په مزدلفه کښې. او د لسم تاریخ د سحر مونځ په تیاره کښې وکي. په دعا کښې مشغول شي. چه دوه رکعته په مقدار نور ختو نه وقت پاتې شي. نو د مزدلفې نه روان شي منی ته. او د دې ځایه اووه کنړې واخلي. او په وادي محسر کښې دې په دوړغلي. په منی کښې دې د جمرهٔ آخري رمي وکي. بیا دې دم تمتع ذبحه کي. بیا دې سر وخریئ. یا دې تې وېخته پرېکي. بیا دې طوافِ زیارت وکي. او په دې طواف کښې به اضطباع نه کوي. د طواف نه پس به سعي وکي. بیا د دولسم یا د یارلسم تاریخ پورې قیام وکي په منی کښې. او هره ورځ د زوال نه پس درې واړه جمرې با قاعده اوولي. بیا د منی نه د واپسئ په وقت په محصب کښې د ماسپښین، مازیګر، ماښام، ماسختن مونځ وکي. بیا آرام. او که دومره نه شه حصار یې نو لږ ساعت دې حصار شي. بیا دې راځي مکې له. بیا دې د مکې نه د رخصت په وقت کښې طوافِ وداع وکي. باقي دې پوره تفصیل د افراد او د عمرې په بیان کښې تېر شوي دي. او که د تمتع کونکي سره هدی تمتع هم وه. نو د عمرې کولو نه پس دې سر نه خریئ. دغه شان به محرم وي. په اتم تاریخ به د حج احرام وتړي.

**مسئله**:- که د قارن او د متمتع سره خرچه کمه وه چه د حج د قربانئ اخستلو نه پس ورسره خرچه وطن ته د رسیدو پورې نه شوه کافي کیدې. او څاروی ورسره هم نه وُ. نو د دم په بدل کښې دې لس روژې ونیسي. درې روژې دې د لسم ذي الحجه نه بینه ختم کي. او که یوه ورځ وه. چه په نهم تاریخ به د روژې په نیولو سره کوضعف په وجه وقوف د عرفې ونکړې شم. نو د نهم نه دې مینه فارغ شي. او بعضې وائي چه حاجي له د نهم تاریخ روژه نکروه ده. او باقي اووه روژې دې د ایام تشریق د وتو نه پس ونیسي. هر ځای چه یې خوښه وي. خو کورته د راتلو نه پس یې نیول غوره دي.

| د جنایت بیان | جنایت په لغت کښې قصوراً و خطاً ته وائي. او دا ځای کښې مراد هغه |
| --- | --- |

کار دې. چه د هغه کول د حرم یا د احرام په وجه ممنوع وي.

د حرم جنایت دوه دي:- (۱) د حرم واښه یا ونه پرېکول. (۲) د حرم حیوان له تکلیف ورکول. یعنې د هغې ښکار وغیره.

او د احرام جنایات اته دي. (۱) کنهالے جامې اغوستل. (۲) سر او مخ پټول.

(۳) نوګونه پريکول - (۴) وېښته لرې کول - (۵) خوشبو استعمالول - (۶) جماع کول -
(۷) د خشکې د حيوان ښکار کول - (۸) د حج د واجباتو نه يو واجب پرېښودل -

د مذکوره جنايات نه ئې که يو جنايت وکه - نو جزا واجبه ده - دا باب هم تفصيل طلب دے
خو دا ځائے د تفصيل نه دے - لهٰذا که دا رنګ واقعه پيښه شوه - خپل حنفي مستند
عالم ته دے رجوع وکړے شي -

**د احصار بيان** | احصار په لغت کښې ګير ولو ته وائي - او په شريعت کښې دا دے چه د
حج يا د عمرے د احرام تړلو نه پس د مرض يا د دشمن وغيره په وجه د وقوف عرفات او
طواف دواړو نه عاجز شي - يا د عمرے د رکن نه - يعنے صرف د طواف نه عاجز شي - او
دے عاجز ته مُحصَر وائي يعنے منعه کړے شوے - نو که قارن يا مفرد د طواف يا د وقوف
نه په يو باندے قادر وو - هغه محصر نه دے - که وقوف د عرفے ئے وکه - او د طواف
زيارت نه منعه کړے شه - نو حج ئے وشه - سر دِ وخرئ - حلال دِ شي - ليکن
د کورے پورے چه ئے طواف نه وي کړے - ښځه ورله حلاله نه ده - او طواف زيارت هر کله
چه کوي کولے شي - ليکن که د ايام نحر د وتلو نه پس ئے وکه - نو د تاخير په وجه به
يو دم واجب شي - او که صرف د وقوف عرفے نه عاجز شه - نو د کورے پورے چه د حج
وخت باقي وي - انتظار پکار دے - اَو چه حج فوت شي - نو د عمرے افعال دِ پوره کی - حلال
دے شي - او په کوم سببونو سره چه احصار راځي - که د احرام نه پس د وقوف عرفه
نه مخکښے ورته د هغے نه يو سبب پېښ شه - نو محصر به شي - ورنه محصر نه دے -

يعنے د هغے سببونو نه دا دي :- (۱) د لارے خرچه - هلاکيدل او د بيا ده تللو نه
عاجز والے - (۲) داسے کوړ کيدل چه بيا نشي تلے راتلے - (۳) د ښځے محرم يا خاوند
چه د مکے معظمے نه د درے ورځو په مسافت مړ شي - (۴) د سفر په وجه د مرض زياتيدل
غالب ګمان - (۵) پس د احرام نه په ښځه باندے عدت لازميدل - (۶) قيد شي يا
ئے بادشاه منعه کی د تللو نه - (۷) خاوند وګړی خپله ښځه منعه کی د نفل حج يا د عمرے
نه - (۸) دشمن ئے منعه کی - برابره خبره ده چه دشمن مسلمان وي او که کافر -
د محصر حکم دا دے چه د کوم سبب په وجه دے محصر شوے دے - يا خو دے د هغے د
لرے کيدو پورے انتظار دوکی - نو که هغه مانع زائل شه او حج ئے کولے شه - او د حج
موقعه وه - نو ودِ کی - ورنه د عمرے پوره کولو نه پس دے حلال شي - او که انتظارے
نه کوي - او دا ئے غوښتله چه ژر حلال شم - نو که دے قارن وُ - يعنے د عمرے او د حج

دوا ړو احرام ئې تړلے وُ ـ بیا محصر شوے وُ ـ نو چاله دے دوه دم یا دَ هغې قیمت ورکی ـ
حرم ته دے ولیږی ـ دپاره دَدے چه هغه ئې دوه د طرفه په حرم کښې ذبحه کی ـ او دَ ذبح تاریخ
او وخت دے ورته وخئی ـ وُس دَ محصر خوښه ده ـ که دغه ځائے پاتے کیږی ـ او که کور ته
ځئی ـ او که بل چرته ـ نو چه دغه دواړه دمه په حرم کښې ذبح کړے شی ـ دے به هله حلالیږی
او که ده یوازے دَ حج یا یوازے دَ عُمرے احرام تړلے وُ ـ نو بیا دوه دم نه ضرورت نشته ـ
یو کافی دے ـ او کوم وخت چه محصر په مذکوره طریقه حلال شی ـ نو ده چه دَ کوم شی احرام
تړلے وُ ـ او بیا محصر شوے وُ ـ دَ احصار زائله کیدو نه پس به دَ هغې قضا با قاعده واجبه
ده ـ که احرام ئې دَ قِران تړلے وُ ـ بیا محصر شوے وُ ـ نو پس دَ احصار زائله کیدو نه به هغه
باندے به قضا کښې یو حج او دوه عمرے واجب دی ـ نو دَ هغه خوښه ده که به قضا کښې
قران کوی ـ بیا عمره ـ او که حج یوازے کوی ـ او دوه عمرے جدا جدا ـ لیکن دا حکم هله
دے ـ که دَ حج په کال ئې قران نه وُ کړے شوے ـ او که په دغه کال ئې کوی ـ نو دویمه عُمره
نه ده واجبه ـ

او که مینه ئې دَ حج افراد احرام تړلے وُ ـ بیا محصر شوے وُ ـ نو به قضا کښې به یو حج
او یوه عمره کول واجب دی ـ خو هله که دَ احصار په هغه کال وخت دَ حج وتے وُ ـ او ده
یکښې حج نه وُ کړے شوے ـ او که دغه احصار د کال دحج وخت لا نه وی وتے ـ او ده دوباره
دَ حج احرام وتاړه ـ با قاعده حج ئې وکه ـ نو قضا به نشته ـ نه دَ حج ـ نه دَ عمرے ـ

او که مینه ئې دَ عمرے احرام تړلے وُ ـ بیا محصر شوے وُ ـ نو پس دَ احصار
زائله کیدو نه به صرف یوه عمره ده ـ عمره هر وخت کولے شی ـ لکه چه د دے بیان
تیر شوے دے ـ

**مدینے منوّرے له تله**

دَ سیّد الکائنات فخرِ موجودات سردارِ دو عالم حضرت
محمّد مصطفیٰ صلے الله علیه وسلّم زیارت له تلل یو افضل طاعت او غوره کار دے ـ
او دَ ترقی درجات دَ پاره دغو لو وسیلو نه یوه لویه او بهترینه وسیله ده ـ بلکه
بعضے عالمانو وائی ـ چه دَ اهلِ استطاعت دپاره قریب قریب واجب دی ـ

نو ډیر خوش نصیب دے ـ هغه بنده چه هغه ته دا نعمت عظمیٰ حاصل شی ـ او
بد نصیب دی هغه څوک چه سره دَ وسعت او دَ استطاعت نه دَ دے نعمت نه محروم
پاتے شی ـ نبی صلے الله علیه وسلّم فرمائیلی دی[1] ـ چه چا حج وُکه ـ بیائے زما دَ قبر

[1] مشکوٰة شریف ۱۲

زیارت وکه پس ځما دَ وفات نه - نو ګویا هغه ځما په ژوندانه کښې ځما ملاقات وکه -

**مسئله** :- په چا باندے چه حج فرض وی - دَ هغه اختیار دے که دَ حج کولو نه پس زیارت له ځی - او که مخکښې - خو هله که دَ حج فوت کیدلو یره ئے نه وه - خو غوره داده - چه مینه دَ حج نه فارغ شی - بیا لاړ شی زیارت له - او دکو موکسانو په لارے کښې چه حج له دَ تلو په وقت کښې مدینه منوره واقع کیږی - هغوئ له مینه زیارت پکار دے - بیاحج -

# کِتَابُ النِّکَاح

**د نِکاح متعلق**

نِکاح په یوه حقله معامله ده ـ او په بله حقله عبادت دے ـ که سړے صرف د عبادت دَ پاره دَ ځان دَ ژکارولو په سبب نکاح نکوی ـ دَ دے نه داخبره غوره ده چه نکاح وکی ـ ځکه چه نکاح دَ نفل عبادت نه بهتر دے ـ سړے په دبدکارئ نه محفوظ کیږی ـ او دنا کاره خیالاتو نه بچ کیږی ـ تهذیب دَ اخلاقو پے راځی ـ دخپل بنی نوع سره دَ معاشرت په وجه ئے په طبیعت کښې صبر و تحمّل پیدا کیږی ـ تربیت دَ بچی په کښې راځی ـ کوم چه ضعیف اولاچار دے ـ او ښځه دَ فتنے نه په امن کیږی ـ دا یو عاجز صنف دے ـ دَ دے مدد په نفقې خرچې سره کیږی ـ لکه چه ویلی دی ـ په مجمع الانهر کښې ـ او دَ نسل زیګون ـ دَ اولاد صالحه پیدائیښ ـ دسود میراث خورهم د نکاح نتیجه ده ـ

الغرض په نکاح کښې نورے ډیرے فائدے او مصلحتونه هم شته ـ خو دا ځائے دَ تفصیلی بیان نه دے ـ او په در مختار کښې راوړی دی ـ چه کوم عبادت دَ آدم علیه السلام نه تر قیامته پورے مشروع دی ـ او په جنت کښې به هم وی ـ دا هسے عبادت سوا دَ ایمان او دَ نکاح نه بل نشته ـ او نبی علیه السلام فرمائیلی دی چه نکاح زما یو سنت (موکده) دے ـ نو څوک چه زما په سنت (موکده) عمل نکوی ـ هغه زما نه دے۔[۲]

**حدیث** :- دنیا ټوله دَ استعمال یو نه پائیدونکے څیز دے او دَ دنیا په څیزونو کښې ښه څیز نیکه او صالحه ښځه ده ـ (صالحه دیندارہ ښځه دسړی دَ پاره یو لوئے نعمت دے ـ هم د دنیا فائده ده ـ هم دَ آخرت)

---

[۱] رواه ابن ماجه ۱۲ [۲] دا زجر دے دَ هغه سړی په حق کښې چه هغه بے دَ معقول عذر نه نکاح پریږدی ـ عالمان وائی چه سړے که معتدل وی نو ـ ضروری حقوق دَ ښځے ئے ادا کولے شو نو نکاح وله سنت موکده دے ـ او که حالت ئے داسے وو چه په ځان ئے دَ زنا وغیره یره وه ـ نو نکاح وله واجب دے ـ لیکن که غریب وُ دَ مهر وغیره چارے ئے نه کیده نو په حدیث شریف کښې راغلی دی چه روژے دے نیسی ـ په روژو سره به ئے دَ شهوت تیزی دفعه شی ۱۲ منه [۳] رواه مسلم

حدیثٌ :- په تحقیق سره ښځه په نکاح اغستے کیږی دَ ښځے دَدین په وجه - او دَ ښځے دمال په وجه - او دَ ښځے دَ ښائیست په وجه - نو ته لازمه ونیسه دینداره - لا سونه دے په خاورو سپیره شه - یعنے څوک دینداره ښځه ځان له غوره کوی - څوک مالداره او څوک حسن داره - خو خیال دَ دینداری پکار دے - دَ کومے پورے چه کیدے شی - او څه خاص مانع نه وی - دینداره ښځه وله غوره ده - او "لاس دے سپیره شه" دا دَ عربئ محاوره ده - چه خاص خاص ځایونو کښ استعمالیږی - دلته دَ دینداره ښځے سره دَ نکاح کولو ترغیب مقصود دے -

حدیثٌ :- نکاح کوئ دَ داسے ښځے سره چه هغه دَ مینے وی - او اولاد داوړونکے وی - په تحقیق سره زه به ستاسو په ډیروالی فخر کوم - په نورو امتونو -

حدیثٌ :- په تحقیق سره کوم بچے چه دَ حمل نه رانتمام او غورزیګی - هغه به دَ خپل خدائے سره جګړه کوی - کوم وخت چه دَ هغه مور و پلار دوزخ ته داخل شی (یعنے هغه به خپل خدائے پاک ته په ډیره التجا او په مبالغے سره دَ والدینو دَپاره سفارش کوی - چه یاربه دوی دَ اور باسه ددوزخ نه - نو خدائے پاک به په خپله مهربانئ دَ هغه سفارش منظور کی) نو هغه ته به او ویلے شی - چه اے کچه ارتاؤ شویه! دَ خپل ربّ جلّ سره جګړه کونکیه - مور و پلار دے بوزه جنت ته - نو بچے به هغه دواړه ددوزخ نه راکاږی - تر دے پورے چه داخل به ئے کړی په جنت کښ (داهم دَ نکاح فایده ده)

په یو بل حدیث کښ ددریؤ تنو ذکر راغلے دے - چه خدائے پاک ددے دَ خرچے مرفے انتظام په خصوصیت سره کوی - یو یکښ هغه سړے دے چه دپاکدامنئ حاصلولو دَپاره نکاح کوی -

| دنکاح تړلو بیان |
|---|

نکاح صرف په دوؤ خبرو سره تړلے کیږی - مثلاً سړے دَ ګواهانو په مخکښ بل ته او وائی چه ماخپله لور تاله په نکاح درکړه - او هغه او وائی چه ما قبوله کړه - بس نکاح اوشو - البته که لوښځه ئے دَیوے نه زیاتے وے - نو کومه چه ده له ورکول غواړی - دَ هغے نوم اغستل ضروری دی - وائی به چه ماخپله لور فلانئ تاله په نکاح درکړه - لیکن که نورے نکاح کړے شوے وے - صرف دایوانے وه - نو که نوم وانخلی - دَ نورنه به مراد دا اغستے کیږی - او که مثلاً

له رواه مسلم ۱۲ ٢ه رواه ابوداؤد والنسائی ۱۲ ٣ه رواه ابن ماجه ۱۲ ٤ه رواه الترمذی والنسائی و ابن ماجه ۱۲ ٥ه در مختار و رد المختار ۱۲

زید بکرته اوویل چه ته ماله خپله فلانئ لور په نکاح راکه. بکر اوویل چه ما درکړه. یا ما درکړې ده. هم نکاح وشه. له دې نه پس که زید ما قبوله کړه اووائي. او که نه.

**مسئله**:- شاهد انوله د دغه ښځې معلومول او تمیز ضروري دې نو هغه په خپله دغه ځائې حاضره وه لیده ئې. یا هغه خو نه ښکاریږي لیکن د هغې خبرې شاهدانو ښه آوریدې او هغه د دننه پوازې ناسته وه. بله ښځه ورسره بالکل نه وه. او هغې ته اشاره وکړې شوه. چه تا دا ښځه په خپل نکاح کښې قبوله کړه. نو دا اشاره کافي ده. نوم اغستلو ته ئې ضرورت نشته. او که ښځه په خپله دارنګ نه وه حاضره. نو که ګواهانو پیژندله. معلومه ورته وه چه مراد هم دغه ښځه ده. نو نوم اغستل ئې کافي دی. که نه نو د هغې د پلار نوم اغستل هم ضروري دی. او که د پلار په نوم ئې هم پیژندګلي نه راتله نو د نیکه نوم ئې هم اغستل ضروري دی. نو مطلب دا شه. چه بیان دې په داسې طریقه وکی. چه معلومه شي. چه دا نکاح د فلانئ دې.

**مسئله**:- فرض کړه چه د زید یوه لور ده نوم ئې هنده دې. د نکاح په وقت کښې هغه حاضره نه وه. او د هغې وکیل د هغې نوم صحیح اووې. لیکن د پلار نوم ئې غلط واغست وئ وې. مثلاً چه هنده لور د بکر. نو دا نکاح صحیح نه دې. دارنګ که وکیل د هغې د پلار نوم خو صحیح اووې. لیکن د هغې نوم ئې غلط واغست. مثلاً وئ وې چه فاطمه لور د زید نو دا نکاح هم صحیح نه دې. او که د نکاح په وقت کښې هغه حاضره وه. او اشاره ورته وکړې شوه. چه دا فلانئ بنت فلانئ. نو په دواړو صورتونو کښې نکاح صحیح دې.

**مسئله**:- د مسلمان د نکاح صحیح کیدلو د پاره د ګواهانو حضور شرط دې یعنې دا ضروري ده. چه کم نه کم د دوؤ سړو یا د یو سړي او دوؤ ښځو په مخکښې وتړلې شي. او دوی په خپلو غوږونو ایجاب او قبول یو ځائې واوري. او که نکاح ئې په پټه وتاړه. ګواه اړونه وؤ. یا وؤ. خو غلا د منزګوره شهادت نه وؤ پوره. نو نکاح نه دې شوې دارنګ که ګواهان صرف ښځې وې. سړې هم ورته وؤ. نو ښځې اګر که شلو ښځه بلکه زیاتې

ئے درکړه. یا درکړې ده. یا درکړې وه. یا درکړې. د دې څلورو واړو لفظو نو مقصد په اصل کښې یو دے. دارنګ قبوله کړه. کړې. کړې وه. کړې. ۱۲ منه ئے درر دو بحر رائق ۱۲ ئے در مختار در دالمختار ۱۲
ئے در مختار و شامي

وي - هم نکاح نه دے شوے. د نکاح په ګواهئ کښې د دوو ښځو سره یو سړے ضروري دے
او په ګواهانو کښې دا صفات ضروري دي. بلوغ - عقل - حریت - اسلام - نو که مذکوره ګواهان
نابالغ وُو - یا لیوني وُو - یا مریونه وُو - یا کافران وُو - قول یا یَو - نو نکاح نه دے شوے غرض
دا دے چه ګواهان دے عاقل - بالغ - آزاد مسلمانان وي - کم نه کم دوه سړي - یا یو سړے
او دوه ښځے.

**مسئله** :- نکاح په عامه مجمع کښې تړل غوره دي. شهرت ئے پکار دے.
دا رنګ د جمعے په ورځ او په جمات کښې تړل غوره خبره ده - لیکن ضروري نه ده - بلکه
د دوو سړو یا د یو سړي او د دوو ښځو په مخ کښې که وتړلے شي - هم وشه - لکه چه
مخکښې تیر شوي دي - اګر که د جمعے نه سوابله ورځ وي - او د جمات نه سوابل ځائے.

**مسئله** :- د نکاح تړلو طریقه دا ده چه مینه خطبه ولولی - د نکاح خطبه مستحب
ده - په خطبه کښې د خاص الفاظو څه تخصیص نشته - لیکن کومه چه د نبي علیه السّلام
نه منقول ده - هغه غوره ده - لکه اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ نَحْمَدُهٗ وَ نَسْتَعِیْنُهٗ وَ نَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ
بِهٖ وَ نَتَوَکَّلُ عَلَیْهِ وَ نَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ اَنْفُسِنَا وَ مِنْ سَیِّاٰتِ اَعْمَالِنَا مَنْ یَّهْدِهِ
اللّٰهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَ مَنْ یُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِیَ لَهٗ ط وَاَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ
لَا شَرِیْكَ لَهٗ وَ اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَ رَسُوْلُهٗ بیا دے دا درے آیته ولولی یَا اَیُّهَا
النَّاسُ اتَّقُوْا رَبَّکُمُ الَّذِیْ خَلَقَکُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ وَّ خَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَ بَثَّ
مِنْهُمَا رِجَالًا کَثِیْرًا وَّ نِسَآءً ط وَ اتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِیْ تَسَآءَلُوْنَ بِهٖ وَ الْاَرْحَامَ ط
اِنَّ اللّٰهَ کَانَ عَلَیْکُمْ رَقِیْبًا ط یَا اَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ حَقَّ تُقٰتِهٖ وَلَا تَمُوْتُنَّ
اِلَّا وَ اَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ ط یَا اَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَ قُوْلُوْا قَوْلًا سَدِیْدًا
یُّصْلِحْ لَکُمْ اَعْمَالَکُمْ وَ یَغْفِرْ لَکُمْ ذُنُوْبَکُمْ وَ مَنْ یُّطِعِ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ
فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِیْمًا ط د خطبے نه پس دے ولی ته یا وکیل ته اووائی چه تا فلانئ
لور د فلاني او د فلانئ په عوض د دومره روپو مهر کښې دے هلک له په نکاح صحیح
شرعي محمّدي سره ورکړے ده؟ هغه به اووائی چه ما ورکړے ده. بیا به خاوند
ته اووائی - چه تا فلانئ لور د فلاني او د فلانئ په عوض د دومره روپو مهر کښې
نکاح صحیح شرعي محمّدي سره قبوله کړیده؟ هغه به اووائی چه ما قبوله کړیده - پس نکاح وشه[3].

---

[3] د دروړد ۱۲ ۳ حینے د بېاحتیاط دپاره ایجاب وقبول درے ځله کوی - او په ایجاب
قبول کښې څه لږ څه الفاظ هم زیاتی کړی - نو که الفاظ مناسب وُ - څه بدی پکښې نشته.
خو دومره ضرورت ورته هم نشته ۱۲ منه

اوکه نکاح کیدونکے ښځه په خپله حاضره وه. یاکیدونکے خاوند غائب ؤ. یا دواړه غائب وو نکاح ولایةً یاوکالةً کیدهٔ. یا دواړه حاضر وُو. او نکاح نځپله تاړه. نو په ایجاب وقبول کښ په دغه موقعه سره مناسب الفاظ ویلے شي.

**مسئله** :- یو دوه وړوکی هلک پلار ؤ. بل دَ وړے جینئ پلار ؤ. هغه دا عنی چه دَ ده لُور خپل ځوئ له غواړم. بیا د نکاح تړلو په وقت کښ د جینئ پلار دَ هلک پلار ته اووے. چه ما خپله لُور تاله په نکاح درکړے ده. او هغه اووے چه ما قبوله کړے ده. نو نکاح وُشه. خو دَ هلکَ پلار سره وشه. او دغه جینئ دَ دهٔ په ځوئ حرامه شوه. ځکه چه دَ پلار منکوحه په ځوئ حرامه ده. اگرکه پلار ئے طلاق ته کړی لهٔ وےچیے نه عالمان وائی چه په داسے صورت کښ احتیاط واجب دے. په قبول کښ دے دا نهٔ وائی چه ما قبوله کړے ده. بلکه دا دے وائی چه ما دَ خپل ځوئ دَ پاره قبوله کړے ده. اوکه صورت داسے ؤ. چه دَ نکاح تړلو په وقت کښ دَ جینئ پلار اووے چه ما خپله لُور ستا ځوئ له په نکاح درکړے ده. او دَ هلک پلار اووے چه ما قبوله کړے ده. نو دَ هلک دَ پاره نکاح وشه.

**مسئله** :- که زید وکیدو بل څوک ئے وکیل که. چه ته ماله نکاح وکه. یا ئے اووے. چه ته ځما نکاح دَ فلانئ ښځے سره وکه. او هغه دله با قاعده نکاح وکه. نو وشه. اوس که زید اُدو انکار کوی. هم شوے دے.

**مسئله** :- که جینئ بالغه وه. او هلک بالغ ؤ. نو دی خپل نکاح په خپله هم تړلے شي. که ښځے دَ ګواهانو په مخکښ اووے. چه ما ځان تاله په نکاح درکه. او هغه اووے چه ما قبوله کړے نو نکاح وشه.

| دَچا سره چه نکاح حرام دے دَ هغو بیان | د خپل اَصل سره او دَ خپلے فرعے سره نکاح حرام دے. یعنے مور. نیا دَ پلار دَ طرفه وی. اوکه دَ مور دَ طرفه وی. دَ بره پورے. او لور دَ لور |
|---|---|

لُور. دَ ځوئ لور. یعنے نوسے کړوسئ. دَ آخره پورے. او خور. خوریزه. وریره. دَ پلار خور. دَ مور خور. دا تولے په سړی حرامے دی. نکاح ئے ورسره جائز نه دے. او دَ دے محرماتو په بیان کښ دَ خور او رورونه مراد عام دے. برابره خبره ده چه په مور او پلار دواړو کښ شریک وی. اوکه صرف په پلار کښ شریک وی. اوکه صِرف په مور کښ شریک وی. دَ ټولو حکم یو دے.

---

ے بحرالرائق وفتح القدیر وشامی ۱۲ ے عالمګیری ۱۲ ے درمختار وشامی ۱۲ ے هدایه درمختار ۱۲

**مسئله:-** دَ تره لور- دَ ترور لور- دَ ماما لور- په سړی حلاله ده- نکاح ورسره کولے شي- دارنګ دَ میرهٔ دَ خاوند لور حلاله ده- لکه دَ زید مور کشنزه وه- بکر ئے په نکاح واخستہ- او دَ بکر دَ بلے ښځے نه یوه لور وه- نو زید دَ بکر دَ دغه لور سره نکاح کولے شي- دارنګ دَ مور دَ خاوند مور هم حلاله ده ؎

مثلاً په مذکوره صورت کښں زید دَ بکر لُور نه آخلی بلکه مور ئے په نکاح اَخلی- نو اخستے شی- دارنګ دَ پلار دَ ښځے مور حلاله ده- یعنے دَ میرے مور مور- دارنګ دَ نګور مور حلاله ده- دارنګ دَ پرکتي ښځه- او پرکتي له دَ پلندر ښځه-

**مسئله:-** دَ زید یوه ښځه ده- نوم ئے صُغری دے- دَ هغے یوه خورده نوم کبری دے- نو دَ کومے پورے چه صغری دَ زید په نکاح کښں وی- دَ کبری سره زید نکاح نشي کولے- او که صغری مړه شوه- یا زید طلاق نه کړه- او عدت ئے تیر شه- بیا دَ کبری سره نکاح کولے شي- او که عدت دَ طلاق نه وُختم شوے- نو دَ کبری سره نکاح نشي کولے- غرض دا دے چه دَ یو سړی دپاره دَ دوؤ خوېندو جمع حرام ده- نکاحاً وی او که عدةً- او څرنګ چه دَ دوؤ خوېندو جمع حرام ده دارنګ دَ ترور او دَ وریرے او دَ ترور او دَ خورزے جمع هم جایزه نه ده- یعنے دَ کومے پورے چه دَ زید په نکاح کښں صغری وی- زید دَ صغری دَ پلار خور او دَ صغری دَ مور خور او دَ هغے وریره او خورزه نشي اخستے- او عامه قاعده دا ده چه دَ کومو دوؤ ښځو په مینځ کښں داسے رشته وی- چه په هغو دواړو کښں که هره یوه نارینه فرض کړے شوه- نکاح به ئے دَ هغے بلے سره ناجایزه وی نو دَ داسے دوؤ ښځو جمع صحیح نه ده- نه نکاحاً نه عدةً- مثلاً دَ یو سړی منکوحه ښځه ده- نو دے دَ دغه ښځے وریره په نکاح نه شي اخستے- ځکه چه په دے دواړو ښځو کښں مونږ هره یوه چه نارینه فرض کو- دَ هغه نکاح به دَ هغے بلے سره صحیح نه وی- ځکه چه دَ تره نکاح دَ وریرے سره صحیح نه دے- او دَ وراره دَ ترور سره صحیح نه دے- هاں که ښځه ئے مړه شوه- یا ده طلاق نه کړه- او عدت ئے تیر شه- بیا دَ هغے وریره په نکاح اخستے شي- او دَ کومو دوؤ ښځو په مینځ کښں چه داسے رشته وی- چه په هغوئ کښں که یوه تنه نارینه فرض شوه- نکاح به ئے دَ هغے بلے سره صحیح وی- نو دَ دے جمع جایزه ده- اګرکه دَ هغے بلے په نارینه فرض کیدلو سره نکاح صحیح نه وی- لکه جمع دَ ښځے او دَ هغے دَ نګور-

مثلاً دَ زید یوه منکوحه ده- نوم ئے سعیده دے- دَ هغے دَ مینځ خاوند نه یو ځوی و- دَ هغه ښځه اوس کونډه ده- نوم ئے حمیده دے- نو زید دَ خپلے ښځے نګور یعنے حمیده

---

؎ در مختار ورد المحتار ۱۲

په نکاح اخستے شي۔ د سعیده او د حمیده جمع جائزه ده۔
ځکه چه مونږ که فرض کړو چه حمیده نارینه دے۔ نو د دے نارینه نکاح به د سعیدے سره جائز وی۔ ځکه چه سعیده تے اجنبي ښځه ده۔ البته که مونږ فرض کو۔ چه سعیده نارینه دے۔ نو دے به د حمیدے د خاوند پلار شي۔ د دواړو سره به ئے نکاح حرام شي۔ نو د ښځے او د هغے د دواړو جمع جائزه ده۔
**مسئله:**- د نسب د رشتے په وجه چه کومے ښځے په سړی حرامے دی۔ د تی رودلو په وجه هم هغه حرامیږی۔
او څه رنګ چه د دوو نسبي خوېندو جمع جائزه نه ده۔ د رضاعي خوېندو جمع هم جائزه نه ده۔ غرض دا دے چه هغه احکام په رضاعت کښې هم جاری کیږی۔ سوا د بعضو صورتو نو نه۔ او د هغے بیان به د رضاعت په مسئلو کښې راشي۔
**مسئله:**- کومه ښځه چه د چا په نکاح کښې وی۔ بل سړی له د هغے سره نکاح حرام دے۔
دا رنګ که د ښځے خاوند مړ شه۔ او عدت د وفات ئے لا نه وُ پوره شوے۔ نو د بل نکاح ورسره صحیح نه دے۔
دا رنګ که ښځه خاوند طلاق ته کړه۔ لیکن عدت د طلاق ئے لا نه وُ ختم شوے۔ نو د بل نکاح ورسره صحیح نه دے۔ غرض دا چه په عدت کښې نکاح صحیح نه دے فاسد دے۔ عدت د طلاق وی او که د وفات۔ او که د بل څه۔
**مسئله:**- د کوم سړی په نکاح کښې چه څلور ښځے وی۔ هغه پنځمه ښځه په نکاح نه شي اخستے۔ او که د دغه څلورو نه ئے یوه طلاق ته کړه۔ نو د کومے پورے چه د دے طلاق عدت نه وی تیر شوے۔ هغه پنځمه نه شي اغستے۔ البته چه عدت تیر شي۔ بیا اغستے شي۔ نو مطلب دا شه۔ چه د څلورو نه د زیاتو جمع جائزه نه ده نه نکاحاً۔ نه عدةً۔
**مسئله:**- د مسلمانے ښځے نکاح د مسلمان نه سوا د بل مذهب لرونکی سره نه صحیح کیږی۔ برابره خبره ده چه مشرک وی۔ او که کتابي۔ او د مسلمان سړی نکاح د کتابي ښځے سره جائز دے

له بحر رائق ودروددر ۱۲ ‌ ‌ له عالمګیری ۱۲ ‌ ‌ له هدایه ودرالمنتقی ۱۲ ‌ ‌ له در مختار ورد المحتار ۱۲

**مسئله** :- دَ خپل متبنیٰ کنیزه حلاله ده. یعنې کوم هلک چه سړي دَ ځوئ په ځائے نیولے وي. او په واقع کښې ئے هغه ځوئے نه وي. که هغه مړ شه. او ښځه ئے پاتے شوه. او عدت ئے پوره شه. یا هلک طلاق ئې کړه. او عدت ئے تیر شه. نو دا سړے ئے په نکاح اخستے شي. ځکه چه په شریعت کښې دَ متبنیٰ هیڅ اِعتبار نشته.

**مسئله** :- خدا نخواسته که دَ سړي لُور دَ زناوه. نو هم ئے دَ هغې سره نکاح جائز نه دے. دارنګ که دَ ښځې ځوئ وُ دَ زنا نه. نو هم ئے دَ هغه سره نِکاح جائز نه دے.

**مسئله** :- که سړي دَ ښځې سره په صحیح طریقه نکاح وکه. نو سره دنکاح نه ئے پې خوابښے حرامه شوه. یعنې دَ هغې ښځې مور او نیا دَ پلار دَ طرفه وي او که د مور دَ طرف پورے تر پورے حرامے شوے. برابره خبره ده چه دَ دغه منکوحې سره ئے صحبت کړے وي او که نه. او که نکاح فاسد وُ. نو دَ خوابښے وغیره حرامولے صرف په دے سره نه راځي. دکوم پورے چه ئے ورسره صحبت نه وي کړے.

**مسئله** :- د خپل پلار ښځه او دَ نیکه ښځه او دَ ورنیکه ښځه د بره پورې په سړي باندې حرامے دي. برابره خبره ده چه دغه خاوند ورسره صحبت کړے وي او که نه. او خپله نګور. دَ ځوئ نګور. دَ نوسي نګور. دکړوسي نګور. دارنګ دَ آخره پورے په سړي حرامے دي. نِکاح ورسره نه شي کولے.

او دَ خپل پلار دَ پرکټئ سره نکاح جائز دے. ځکه چه هغه ئے نه دَ خپل پلار ره ده. نه دَ خپلې مور ره. او دَ خپل ځوئ دَ پرکټې سره هم نکاح جائز دے.

**مسئله** :- که سړي کنیزه ښځه په نکاح واخسته. او دَ هغې سره لور هم وه. نو که دَ دغه ښځې سره ئے صحبت کړے وي. نو دغه پرکټئې پې حرامه ده. نکاح ورسره نه شي کولے. او که صحبت ئے ورسره نه وُ کړے او هغه مړه شوه نو بیا که د دغه پرکټې سره نکاح کوي. کولے شي. دارنګ که صحبت ئے ورسره نه وُ کړے. او طلاق ئے کړه. او عدت تیر شه. نو هم دغه حکم دے. چه دَ دغه پرکټئې په نِکاح اخستے شي. او دَ پرکټې دَ لور هم هغه حکم دے. چه کوم دَ پرکټئې

ے عالمگیری ۱۲ ے بحرالرائق ۱۲ ے درمختار وشامی ۱۲ ے شرح التنویر وشامی ۱۲

پر کیږی دے۔

**مسئله** :- که د ښځے خاوند نه وُ - او کیږه ئے شوه - د زنانه - نو دا ښځه که
څوک په نکاح اخلی - نکاح ئے صحیح دے - لیکن د کومے پورے چه ئے بچے نه وی شوے -
صحبت ورسره نه شی کولے - البته چا چه ورسره زنا کړے وه - که هغه په نکاح
واغستله - نو صحبت ورسره کولے شی - او بچے چه پیدا شی هغه به هم د هغه
وی - خو هغه چه د نکاح نه پس کم نه کم شپږ میاشتے پس پیدا شوے وی۔

**مسئله** :- که زید د جونډے مشتهاة ښځے سره حرامه جماع وکړه په
فرج کښ - یا جماع ئے ونکړه - لیکن په شهوت سره ئے مسه کړه - او په مینځ کښ
څه داسے حائل نه وُ - چه د هغے د بدن د ګرمئ رسیدلو نه مانع وُ - یا ئے په
شهوت سره ښکل کړه - یا ئے په شهوت سره براهِ راست د هغے اندام مخصوصه
ته نظر وکه - یا ښځه ولګیده - په شهوت سره ئے زید مسه که - یا ئے په شهوت
سره ښکل - یا ئے د هغه اندام مخصوصه ته براهِ راست نظر وکه - او زید هم
ورو کے نه وُ بلکه حد د شهوت ته رسیدلے وُ - نو دے ټولو صورتونو حکم دا دے -
چه د دغے ښځے مور او نیا د بره پورے - او دا رنګ د دغه ښځے لور او نوسے کړوسے
د آخره پورے ټولے په زید حرامے شوے - نکاح ورسره صحیح نه دے - دغه رنګ دغه
ښځه د زید په پلار نیکه په ورنیکه د بره پورے - او د زید په ځوئ په نوسی کړوسی
د آخره پورے په ټولو حرامه شوه - نکاح ئے ورسره نه کیږی۔

**مسئله** :- کوم اسباب د حرمت چه په مذکوره مسئله کښ تیر شو -
یعنی شهوةً مسه کول وغیره - دا عام دی - قصداً وی او که په هیره - او که په
خطا ئے - هرڅنګه چه وی - مذکوره حرمت پے راځی - نو که خپله ښځه سړی د شپے
د جماع په نیت ویخوله - نو د هغے لور یا مور لاسے په شهوة سره په غلطئ لاس ورد وُ
په دے ګمان چه دا ئے ښځه ده - نو ښځه ئے پے د همیشه د پاره حرامه شوه - په
ده لازمه ده چه بیرے ئے دی۔

---

[1] شرح التنویر ورد المحتار ۱۲ [2] درمختار و خانیه وشامی ۱۲ [3] یعنی په اوبو کښ او په آئینه وغیره کښ عکس لیدل نه دی معتبر او عین اندام مخصوصه لیدل معتبر دی - اګر که په اوبو کښ دننه وی - یا د شیشے نه هدایه ۱۲ منه [4] لیکن که معروفه جماع ئے ورسره نه وی کړی بلکه بدکاری ئے ورسره کړی وی د لیو برلو په لار - یا د شهوةً مسه کولو یا د ښکلولو یا د نظر کولو صورت وی او په دے سره انزال شوے وی نو فتوی په دے ده چه په دے سره مذکوره حرمت نه راځی یعنی د ښځے اصول او فروع په دغه سړی نه حرامیږی او د هغه اصول او فروع په ښځه نه حرامیږی - ۱۲ منه [5] هندیه وشامی ۱۲ [6] په شامی کښ ئے نوره تفصیل هم راوړیدی ۱۲ منه

**مسئله[1]:-** ذمذکوره مسئلو نه معلومه شوه - چه ذوم که عدد ذشهوت ته رسیدلے وَ اوذخوابنه سره ئے زنا وکړه - نو ذهغے لور په ده ذهمیشه دپاره حرامه شوه - دارنګ که سړی د خپلے انګورسره زنا وکړه - نو انګورئے په خوئ ذهمیشه دپاره حرامه شوه - بلکه صرف په شهوت سره د لاس درول او وغیره په صورت کښ هم حراموالے راځی - لکه چه مخکښ ذکرشو -

**مسئله[2]:-** که په زید باندے خپله منکوحه دمذکوره حرمت په وجه حرامه شوه ریعنے کوم اسباب چه ذدے نه مخکښ په دریمه مسئله کښ ذکرشو - ذهغے په وجه) نو دانه چه دغه منکوحه ئے بالکل ذ نکاح نه اووته - نکاح شته - خو فاسدا دے نوکه ذ تفریق نه مخکښ ئے ورسره جماع وکړه - حد ذزنا پے نه لګی - اوکه دغه منکوحه ئے بل میړه کول غواړی - نشی کولے - ترکومے پورے چه زید دغه منکوحه پریخے نه وی - او عدت تیرشوے نه وی -

**مسئله[3]:-** که سړی ذ خپلے ښځے سره یعنے ذ خپلے منکوحے ذخورسره زنا وکړه نو په دے سره به دغه خپله منکوحه نه حرامیږی - او ذګناه حکم جدادے -

**مسئله[4]:-** ذکوموددو ښځو جمع چه جائزه نه ده لکه چه مخکښ ذکرشوی دی - که سړی دغه دواړه په یو عقد سره په نکاح واخستے - نو نکاح باطل دے - دیوے هم صحیح نه دے - اوکه په جدا جدا عقد سره ئے واخستے - نو ذکومے نکاح چه مخکښ شوے دغه صحیح دے - او بل باطل - نو ذ اولے سره صحبت کولے شی - او ذ دویمے سره نه شی کولے - لیکن که ذ دویمے سره ئے صحبت کړے وَ - نو اوس به ذ اولے سره هم صحبت نه شی کولے - ترکومے پورے چه ددویمے عدت تیرشوے نه وی -

**مسئله[5]:-** که چا شاهدان وړول په دے خبره چه زید اقرارکړے دے - ویئلی ئے دی چه ما فلانئ ښځے له په شهوت سره لاس دروړے - یا ما ښکل کړے ده - په شهوت سره - نو دا شاهدی قبلیدے شی - دارنګ که شاهدانو په دے خبره شاهدی کوله - چه زید فلانئ ښځے له په شهوت سره لاس وروړے - یا په دے خبره چه زید فلانئ ښځه په شهوت سره ښکل کړے ده - وغیره - نو دا شاهدی هم قبلیدے شی

[1] درمختار وردالمحتار ١٢ [2] شرح التنویر ١٢ [3] شرح التنویروشامی ١٢ [4] درمختار ١٢

**دنکاح د ولي بیان**

دهلک[1] او د جینۍ د نکاح کولو او د نه کولو چه چاله اختیار دے۔ هغه نه ولي ویلے شي۔ خو د ولي ولیتوب د عاقل بالغ په حق کښې ولایت نداب دے۔ او د نابالغ په حق کښې ولایت اجبار دے۔ یعنې ولي عاقله بالغه ښځه په نکاح مجبوره کولے نه شي۔ د هغې اختیار خپل دے۔ خو غوره داده۔ چه هغه خپل واک والي له ورکي۔ ځکه چه په خپله خپل نکاح کول د ښځې په حق کښې یو قسم بے شرمي او بے حیائي ده۔ او د نابالغ د نکاح اختیار ولي له دے۔ او دے ئې مجبوره کولے هم شي۔ او د ولي د پاره ضروري ده چه دے بالغ وي۔ او د عاقل او آزاد مسلمان د پاره د مسلمان۔ نو نابالغ او لیونے او مړے نه شي ولي کیدے۔ دارنګ د مسلمان د پاره کافر نه شي ولي کیدے۔ او د نکاح ولي د ټولو نه مینه عصبه بنفسه دے۔ په ترتیب سره۔ یعنې پلار که هغه نه وي نو نیکه یعنې د پلار پلار که هغه نه وي نو ور نیکه۔ یعنې د پلار د پلار پلار۔ دارنګ د بره پورے۔ او که په دوئ کښې یو هم نه وي۔ نو خپل ورور یعنې ابئ دادا روړے۔ که خپل ورور هم نه وي۔ نو کوم ورور چه ورسره صرف په پلار کښې شریک وي هغه یعنې ورور د میرے مورو۔ او که هغه هم نه وي۔ بیا د خپل ورور ځوئ۔ که هغه هم نه وي۔ نو د دغه دراره ځوئ۔ دارنګ د دراره د ځوئ ځوئ۔ د آخره پورے باقاعده۔ او که دوئ هم نه وي۔ بیا د هغه ورور ځوئ چه هغه ورسره شریک وي یوازے په پلار کښې۔ او که دے نه وي۔ نو بیا دے ځوئ۔ دارنګ د آخره پورے باقاعده۔ او که دوئ هم نه وي۔ بیا خپل تره۔ یعنې د پلار خپل ورور ابئ دادا روړے۔ که هغه هم نه وي۔ نو د خپل حقیقي تره ځوئ۔ بیا د دغه تره د ځوئ ځوئ۔ د آخره پورے باقاعده۔ او که دی هم نه وي بیا کوم تره چه ئې د پلار سره یوازے په پلار کښې شریک دے۔ د هغه ځوئ۔ بیا د دغه تره د ځوئ ځوئ۔ الخ که دوئ هم نه وي۔ بیا د پلار خپل تره۔ یعنې د نیکه ورور ابئ دادا روړے۔ بیا د نیکه ورور صرف د پلار د۔ که هغه هم نه وي۔ بیا د پلار د حقیقي تره ځوئ۔ بیا د هغه بل تره ځوئ۔ څرنګ چه قاعده ده۔ که دی هم نه وي۔ بیا د نیکه خپل تره۔ یعنې د پلار د پلار د پلار ورور ابئ دادا روړے۔ بیا د نیکه هغه تره چه هغه د دغه نیکه سره شریک وي صرف په پلار کښې۔ بیا د نیکه د دغه اول تره ځوئ۔ بیا د نیکه د دغه بل تره ځوئ باقاعده په ترتیب د میراث سره۔ دا ټول کسان چه ذکر شو۔ عصبه بنفسه دي۔ او که عصبه بنفسه هیڅوک نه وي۔ نو بیا حق د ولایت مور له دے۔ بیا د پلار مور له۔ بیا د مور مور له

[1] درمختار و رد المحتار ۱۲

بیا لورله - بیا دَ خوئ لور حقداره ده - بیا دلور لور - بیا دَ خوئ دَخوئ لور - بیا دَ لور دلور لور دا رنګ په دَ ترتیب سره - بیا هغه نیکهٔ چه هغه نه جنئ فاسد ویلے شی - لکه دَ مور پلار - بیا خپله خور اَبئ دا دا را وریے - بیا هغه خور چه ورسره شریکه وی صرف په پلار کښې - بیا هغه خوک چه ورسره شریک وی - صرف په مور کښې - بیا دَ دے دریواړو اولاد په دغه ترتیب سره - اوکه په دے کښې هم څوک نه وی - بیا ولایت ذوی الارحام له دے - یعنے ترو دَ پلار خور - بیا ماما - بیا ترور یعنے دَ مور خور - بیا دَ تره لونړه وغیره - په معروف ترتیب سره -

**مسئله** :- که نجئ لیونئ شوه او دَ هغے ځوان ځوئ هم وُ - پلار ئې هم وُ - او دنکاح ضرورت ئې پیښی شه - نو دَ هغے ولی دَ هغے ځوئے دے - ځکه چه دَ نکاح په ولیتوب کښې دَ ځوئ حق دَ پلار نه هم مقدم دے - خو عالمان وائی غوره داده - چه ځوئ دَ نیکه له اجازت ورکی - نو خدمت دَ ولایت په دغه نیکه اداکی -

**مسئله** :- کومه جینئ چه عاقله بالغه وی - هغه دَ اختیار خاونده ده - که نکاح کوی اوکه نه - او دَ هر چا سره چه کوی - جبر پے نشته - واک ئې خپل دے - که هغے په خپله خپل نکاح دَ چا سره با قاعده وتاړه نو وشه - برابره خبره ده - چه ولی ئې خبروی اوکه نه - بلکه ولی که پے خفه وی هم نکاح شوے دے - البته که ولی پے ناخوښ وُ - او هغے په غیر کفو کښې نکاح وکه - یعنے دَ ځان نه لاندے سړے ئې واغست - نو په دے صورت کښې فتویٰ په دے خبره ده - چه نکاح نه دے شوے - اوکه نکاح ئې په کفو کښې کړے وُ - خو مهر ئې دَ مهرِ مثل نه ډیر کم یخے وُ - ( دَ کفایت او دَ مهرمثل بیان به په خپل خپل باب کښې راشی ) نو نکاح خو شوے دے - لیکن کوم ولی چه عصبه بنفسه دے - لکه مینه چه ذکر شوی دی - هغه له حق دَ اعتراض شته - تر دے پورے چه مهرورله پوره کی - یا ئې نکاح په قاضی مات کړی -

**مسئله** :- دَ عاقلے بالغے نجئ نکاح دَ هغے په اجازت موقوف دے - خو دباکرے او دَ ثیبے دَ اجازت په طریقه کښې فرق شته - ( دَ باکرے او دَ ثیبے بیان به وروستو راشی )

که عاقله بالغه جینئ باکره وی - او دَ هغے ولی اقرب یا دَ ولی اقرب وکیل یا اَستاذی دَ هغے نه اذن غوښته - ورته ئې اوویل مثلاً - چه زه ستا نکاح دَ فلانی سره کوم

---

له دروردر ۱۲ ۲له الهدایه ودرورد ۱۲ ۳له شرح التنویر ورد المختار ۱۲

یا تا فلانی لہ پہ نکاح ورکسم - یا فلانے تا پہ نکاح اغستل غواړی - نو هغه چپ شوه یئے ردئے وَ نه که یا مسکئے شوه - یائے وخندل خونه پہ نقاله یا پہ ژړا شوه - خو بے آوازه - نو لس دا اذن دے - پہ ژبہ ویل ضروری نه دی. چه زه پرے راضی یم - یا ځما اجازت دے - خو جینئے ته دَ خاوند نوم آخستل هم ضروری دی - پہ داسے طریقه چه هغے ته معلومه شی چه فلانے دے - او که دَ خاوند نوم ئے ورته وانخست - او هغے ته معلومه وه چه څوک دے - نو صرف پہ چپ کیدلو وغیره سره رضامندی نه ثابتیږی - دَ څو پورے چه دده رضانه ئے وَ نه سپاری چه ستا څوک خوښن دے ځما خوښ دے -

او که جینئے عاقله بالغه باکره وه - او ولی اقرب دَ هغے نکاح بے دَ هغے دَ پوښتنه وکه - نو دا نکاح دَ هغے پہ اجازت موقوف دے - که بیا ورله دَ دے نکاح خبر ده ورکه - پہ خپله یا دَ استازی پہ ذریعه چه ستا نکاح ما دَ فلانی سره وتاړه - نو هغه چپ شوه یا مسکئے شوه - یائے وخندل یا پہ ژړا شوه - نو دا هم اجازت دے - لکه چه مخکښ ذکر شو - او که دَ نکاح خبر ورله بل چا ورکه - نو که خبر ورکونکے ثقه وُ - یا دوه تنه وُو - دَ هغے هم دا حکم دے - البته که خبر ورکونکے یو تن وُ - غیر ثقه - بیا دَ هغے چپ کیدل اجازت نه دے - هاں که پہ ژبہ ئے اجازت ورکه - یا بل څه داسے کارئے وکه چه دَ هغے نه اجازت ثابتیده - نو اجازت به اوګڼلے شی - دا ټول بیان دَ باکرے پہ بابت کښ وُ -

او که عاقله بالغه جینئے ثیبه وه - مثلاً کنډه وه - کیدونکے نکاح ئے دَ دویم وه - دَ هغے ولی اقرب یا ولی ابعد یا اجنبی دَ هغے نه اذن غوښته - یائے ورله نس: نکاح نه خبر ورکه - نو دَ هغے چپ کیدل وغیره دَ رضا دَ پاره کافی نه دی - بلکه پہ ژبه سره اجازت ضروری دے - او که پہ ژبه خوئے څه وَ نه ویل - لیکن څه داسے کارئے وکه چه رضا پرے ثابتیده لکه امبارکی ئے واخسته - یا خاوندئے ځان ته پریخود - یا مهرئے طلب که - یا نفقه وغیره نو هم به رضا ګڼلے شی - دارنګه که عاقله بالغه جینئے باکره وه - او کوم ولی چه هغے نه اقرب وُ - لکه چه ترتیب ئے بیان شوے دے - هغه موجود وُ - لیکن ولی ابعد یا اجنبی وله بے دَ هغه دَ پوښتنه نکاح کاؤ - دَ جینئے نه ئے اذن غوښته - یائے وکه - پس دَ نکاح نه جینئے خبر شوه - نو دَ دے چپ کیدل وغیره کافی نه دی - بلکه دَ دے حکم هم داسے دے لکه دَ ثیبے حکم چه اوس ذکر شه -

او که دے ولی ابعد یا اجنبی دا نکاح دَ ولی اقرب پہ وینا تړلے وی - نو دے به پہ شان دَ ولی اقرب ګڼلے شی -

مسئله[1] :- که خاوند باکرے بالغ نه اووے - چه کوم وقت تا نه د نکاح خبر د دور رسیدو نو چپ شوے - او هغے اوویل چه نه بلکه ما هغه وقت نکاح رد کړے وو - نو خبره د ښځے معتبره ده - سره د قسمه - او دا قول مفتیٰ به دے -

او که په دے دواړو کښ یو تن په خپله دعوه شاهدان ودرول نو قبلیږی - او که دواړه شاهدان ودرول - نو شاهدان د ښځے غوره دی - لیکن که خاوند شاهدان ودرول د ښځے د هغه وقت په رضا کیدلو یا په اجازت - نو شاهدان د خاوند غوره دی -

مسئله[2] :- که د عاقلے بالغ باکرے جینۍ نکاح د هغے ولی بے د ښځے د تپوسه وکه - بیا چه هغه خبر شوه نکاح ئے رد که - نو رد شه - وس که بیا راضی شوه نو هم هغه اول نکاح نه دے شوے - ځکه چه هغه په رد سره باطل شوے دے - له دے وجے نه عالمان احتیاطاً وائی چه د جینۍ سره په کومه اوله شپه یو ځائے کیږی - د دے نه مینه په دغه شپه تجدید د نکاح غوره دے - لکه څنګه په علاقو کښ چه دا طریقه مروّجه ده -

مسئله[3] :- په عاقل بالغ هلک باندے هم جبر نشته - بلکه هغه خود مختار دے - که هغه نه بے تپوسه د هغه نکاح وتړلے شی - نو د هغه په اجازت به موقوف وی - که اجازت ئے وکه نو وشه - کنی نو نه - خو د ده چپوالے د رضا او د اجازت د پاره نه کافی کیږی - بلکه حکم ئے په شان د ثیبه دے - لکه چه مخکښ ذکر شوی دی -

مسئله[4] :- نابالغ هلک او نابالغه جینۍ خود مختاره دی - نکاح ئے بے ولی نه نشی کیدے - که په خپله ئے نکاح وکه بے د ولی نه - یا د له بل چا وکه - نو هغه به د ولی په اجازت موقوف وی - که اجازت ئے وکه - وشه - کنی نو نه - او ولی له د دے نکاح کولو او نه کولو پوره اختیار دے - که نکاح ئے ولړوکه - هغه ی : وس په نابالغ والی کښ نه شی رد کولے برابره خبره ده - چه جینۍ د خاوند کره تلی وی او که لا نه - د دواړو یو حکم دے او که پس د بلوغ نه ئے رد کوی - نو په هغے کښ تفصیل دے -

که د غه نکاح ورله پلار کړے وو - یا نیکه - نو پس د بلوغ نه ئے هم نه شی رد کولے - په دے صورت کښ خیارِ بلوغ نشته - او که دغه نکاح ورله د پلار نیکه نه بغیر بل چا کړے وو - نو بیا رد کیدے شی - په دے صورت کښ خیارِ بلوغ شته بیان به شی

[1] درمختار ورد المحتار ۱۲ [2] شرح التنویر ۱۲ [3] بحرالرائق ۱۲ [4] بحرالرائق ورد محتار و شامی ۱۲

**مسئله**:- که جینئ مراهقه وه (یعنې ځوانئ ته نژدې وه) او ده د نهو کالو. پلار به پټو سره په نکاح ورکړه. په دې خیال چه دا نا بالغه ده. او هغې دعوه د بلوغ کوله. او د دې خبرې چه دا نکاح نه ده شوې. او پلار یا خاوندئ د هغې د نابالغوالي دعوه کوله. نو خبره د جینئ معتبره ده.

دا رنګ که مراهق هلک دعوه د بلوغ کوله. مثلاً پلار د ده څه مال خرڅ که نو ده ویل چه زه بالغ وُم. بې اجازته دې خرڅ کړې. زه پې راضي نه یم. او پلار یا آخستونکي د هغه د نابالغ والي دعوه کوله. نو خبره د هلک معتبره ده. او که دواړو شاهدان ودرول. نو صحیح قول دا دې. چه شاهدان د بلوغ غوره دي. یعنې په اول صورت کښې د جینئ او په دویم کښې د هلک.

**مسئله**:- که د نابالغ هلک یا د نابالغې جینئ د نکاح حقدار یعنې ولي اقرب موجود وُ. او بې د هغه د پټوسه ولي ابعد نکاح وکه. نو دا نکاح به د ولي اقرب په اجازت موقوف وي. البته که ولي اقرب په سفر کښې وُ. او دومره لرې وُ. چه خبره که هغه ته پاتې کړې شي. نو دا مناسب موقعه به د لاس نه وځي. او د غوښتونکي هلک اولیاء به انتظار ونکړي. په دا سې صورت کښې اکثر مشائخ وائي. چه ولي ابعد که د ولي اقرب نه بې پټوسه نکاح وکه هم وشه.

او ځینې عالمان وائي چه ولي اقرب که کم نه کم د دریو شپو د ورځو په مسافت لرې وُ. نو هله کیږي. کنې نو موقوف به وي د هغه په اجازت.

**مسئله**:- که جینئ واده شوې نه وه. او بکارة ئې زائل شوې وه. (یعنې پرده د رحم ئې شلیدلې وه) په سبب د ټوپ وهلو. یا په سبب د کثرت حیض یا په سبب د زخم. یا بنځه وه ناواده شوې. بکارة ئې زائل شه. په سبب د دې چه عمرئې ډیر وشه. نو په دې ټولو صورتونو کښې به شرعاً باکره ګڼلې شي. او که بکارة ئې د یو خُل په زنا سره زائل شوې وُ. او دا خبره مشهوره نه وه. او حد د زنا پې نه وُ لګیدلې. نو دا هم باکره ده حکماً.

او که باکره واده کړې شوه. لیکن خاوندئې بالکل نامرد وُ. په دې سبب سره تفریق را وسیئ شه. یا خاوند ورسره لا جماع نه وه کړې. چه طلاق ئې کړه. یا مړ شه. نو ثیبه به ورته نه وایو. بلکه باکره ده. او که د باکرې سره جماع

---

[1] شرح التنویر و رد المحتار ۱۲ [2] در مختار و رد المحتار ۱۲

وکړے شوه په نکاح فاسده سره ـ نو وس باکره نه ده ـ بلکه ثیبه شوه ـ لکه په نکاح صحیح کښې چه په جماع سره ثیبه کرځي ـ

**مسئله** :ـ که د پلار نیکه نه سوا بل ولی نابالغه جینۍ په نکاح ورکړه په غیر کفو کښې یائې د هغې مهر د مهر مثل نه ډیر کم مقرر که ـ یائې نابالغ هلک له څوک او غوښته ـ خو مهرئې د مهر مثل نه ډیر زیات کیښود ـ نو دا نکاح نه ده شوے ـ او که نکاحئې ورله په کفو کښې کړے وُ ـ او مهرئې مناسب وُ د مهر مثل سره ـ نو په دے صورت کښې دا نکاح اوس خو صحیح دے ـ لیکن نابالغ له خیار د بلوغ شته ـ یعنے لیس د بلوغ نه که ئې خوښه وه ـ دغه نکاح دے په حال پریدی ـ او که نکاحئې ماتول غوښته ـ قاضي ته دے خبره ورانسے کړی چه هغه ئې مات کړی ـ خو دومره خبره ضروری ده ـ چه جینۍ ته که د خپل نکاح علم مینه وُ ـ بیا بالغه شوه ـ او تر اوسه پورے ورسره خاوند جماع نه وه کړے باکره وه ـ نو کوم وخت چه ځوانئ ته رسی ـ سره د رسیدو دے فوراً ناراضګی ظاهره کی ـ چه زه په دے نکاح راضي نه یم ـ یا دے اووائی چه زهٔ دا نکاح باقی پاتے کیدل نه غواړم ـ که دغه ځائے څوک نه وی خیر دے ـ په تنهائیئے کښې اووائی او بیا دے پے دوه تنه شاهدان هم ونیسی ـ (د پاره د دے چه په وقت د ضرورت کښې شاهدی وکی) خو صرف په دومره قدر سره نکاح نه ماتیږی ـ قاضي ته به خبره وړاندې کوی ـ نو هغه به ئے فسخ کوی ـ

او که ځوانئ ته د رسیدو نه پس لږ ساعت چپ شوه ـ ناراضګی ئې د دے نکاح ظاهره نکړه ـ نو د نکاح ماتولو اختیارئے او غورزیده ـ اوس ئے نه شی ماتولے ـ او که دا مسئله ورته معلومه نه وه ـ د دے وجے نه ئے ځوانئ ته د رسیدو سره فوراً تردید د نکاح ونه که نو هم دغه حکم دے چه وُس ئے اختیار نشته ـ د مسئلے نه معلومولے عذر نه دے ـ او که باکرے جینۍ ته مینه د خپل نکاح علم نه وُ ـ ځوانئ ته ورسیده ـ بیا ورسته خبر شوه ـ نو سره د خبریدو دے په دے نکاح ناراضګی ظاهره کی ـ که د خبریدو نه پس ئے فوراً تردید ونکه ـ نو اختیارئے او غورزید ـ لکه چه مخکښې ذکر شو ـ او که خاوند ورسره جماع کړے وه ـ بیا ورستو دا ځوانئ ته اورسیده ـ یا د دے خاوند د جماع نه مینه هم دا ثیبه وه ـ نو د دے د پاره ځوانئ ته د رسیدو سره فوراً انکار

---

له درمختار و رد المحتار ۱۲ ـ ځه له دے وجے نه عالمان وائی چه حق د خیار بلوغ دا سے دے ـ لکه حق د شفعے ـ فوری طلب ئے ضروری دے ـ او که دا دواړه حقه ئے جمع شو ـ نو عالمان وائی چه مینه دِ فوراً د دواړو طلب په هیبت دکی ـ او ووائی چه زهٔ د دا دواړه حقه طلبوم ۱۲ درود منه

ضروری نه دے۔ هر څو ورزے چه اوځی۔ اختیارئے باقی دے۔

هاں که په ژبه ئے دَ رضا اظهار وکه۔ یائے څه داسے کار وکه چه رضا ترِ ثابتیږی لکه خاوند ځان ته پریښودل۔ مهر طلبول وغیره۔ وغیره۔ نو بیا به اختیار اوغورزیږی۔ نکاح به لازم شی۔

او دا رنګ حکم دَ هلک دے۔ که پس دَ بلوغ نه ئے په ژبه اووے چه زه پے راضی یم یائے څه داسے کار وکه چه رضا ترے ثابتیږی۔ لکه جماع یا بنګلول وغیره وغیره نو خیار بلوغ به ئے اوغورزیږی۔ کنی نو نه۔

دَکفایت بیان | شریعت په دے خبره ډیر زور اچولے دے۔ چه دَ جینئ نکاح دے په کفو کښی کوی۔ په غیرِ کفو کښی دے نه کوی۔ یعنے څوک چه دَ هغې دَ برابرئ او دَ هغې دَ درجے نه وی۔ بلکه لاندے وی تے دَ هغې سره دے نه کوی۔ او د اکفایت یعنے برابروالے په یو څو څیزو نو کښی معتبر دے۔ په نسب۔ حریت۔ اسلام۔ دیانت۔ حرفت۔ مال کښی۔ خو دَ نسب کفایت عام نه دے۔ بلکه په عرب کښی معتبر یږی۔ نو قریش بعضے دَ بعضے کفو دی۔ او باقی عرب بعضے دَ بعضے کفو دی خو ځینے عالمانو تے بنی باهله قبیله مستثنیٰ کړځولے ده۔ وائی چه دی دَ سپکوالی په وجه دَ نورو عربو کفو نه دی۔

بهرحال په نسب کښی دَ پلار اعتبار دے۔ دَ مور نه دے۔ نو که دَ چا پلار عربی وُ۔ او مورئے عجمی وه۔ نو دے دَ عربی ښځے کفو دے۔ او که پلار ئے عجمی وُ۔ نو دے دَ عربی ښځے کفو نه دے۔ البته په بعضے کتابونو کښی ئے راوړی دی۔ چه عجمی که عالم وُ۔ نو دے کفو دے دَ عربئ۔ ځکه چه دَ علم شرافت اوچت دے۔ دَ نسب دَ شرافت نه۔ او په اسلام کښی برابروالے په نورو کښی نه دے معتبر۔ بلکه خاص دے۔ په عجم پورے۔ نو څوک چه په خپله مسلمان شوے وی۔ او پلار ئے کافر وی۔ هغه کفو نه دے۔ دَ هغې ښځے چه هغه په خپله هم مسلمانه وی۔ او پلار ئے هم مسلمان وی۔ او څوک چه په خپله مسلمان وی او پلار ئے هم مسلمان وی لیکن نیکه ئے مسلمان نه وی هغه کفو نه دے دَ هغې مسلمانے ښځے چه دَ هغې پلار نیکه دواړه مسلمانان وی هاں که دَ مسلمانے ښځے نیکه او ورنیکه دَ لرے پورے پیړئ په پیړئ مسلمانان وُو۔ او دَ مسلمان سړی ورنیکه کافر وُو۔ اسلام ئے دَ نیکه نه شروع

---

له هدایه و بحر و درود ۱۲

شوے وی۔ نو دے د دغه ښځے کفو دے۔ ځکه چه په اسلام کښې د برابروالی اعتبار صرف د نیکه پورے دے۔ او په عرب او په عجم دواړو کښې کفائت معتبر دے۔ په دیانت یعنی په دینداریٔ[۱] کښې۔ نو کوم سړے چه فاسق فاجر وی۔ مثلاً شرابی، زناکار، بدکار هغه د نیک بختے دینداره ښځے کفو نه دے۔

او په مال کښې د کفائت مطلب دا دے۔ چه کوم سړے بالکل مفلس وی۔ چه د مهرِ معجّل او د نفقے ورکولو قدرت هم نه لری۔ هغه د مالداره ښځے کفو نه دے۔ او که د دے قدرت ئے وی۔ نو اګرکه ښځه ئے په مال کښې زیاته وی۔ دے به د هغے کفو ګڼړلے شی۔ او په حرفت کښې د کفائت نه مراد دا دے چه پیشه ئے د هغوی د پیشے او د کسب نه ناکاره[۲] او سپکه نه وی۔

د مهر بیان | په شریعت[۳] کښې مهر کم نه کم لس شرعی درهم وی۔ او د زیات ئے څه خاص حد نشته۔ هرڅومره چه ئے مقرر که، خو ډیر زیات نه دے ښه۔ نو که مهر د لس درهم نه کم کیښودے شه۔ مثلاً په پنځه درهمه ئے نکاح وکه هم به پوره لس درهم واجبیږی۔ د لس نه کم مهر نشته۔ او که په دے صورت کښې خاوند لا د ښځے سره نه صحبت کړے وی۔ نه خلوتِ صحیحه او طلاق ئے کړو نو د لس نیمه به ورکوی۔ یعنی پنځه درهمه۔

مسئله :- که په نکاح کښې د مهر ذکر نه وو کړے شوے چه مهر څومره دے۔ نو هم نکاح کیږی۔ بلکه په نکاح کښې ئے که اووے۔ چه مهر به پکښې نه وی هم نکاح کیږی۔ خو د دواړو صورتو نو حکم دا دے۔ چه بیا که په دے دواړو کښې یو تن مړ شو۔ یا ورسره خاوند صحبت وکه، یا خلوتِ صحیحه۔ نو مهرِ مثل به لازم شی۔ او که خاوند ورسره نه صحبت کړے وی۔ نه خلوت صحیحه او طلاق ئے کړو۔ نو ښځه د مهر مستحقه نه ده۔ بلکه په خاوند واجب دی۔ چه هغے له متعه ورکی۔ یعنی درے[۴] زړوکی۔ یو قمیص یو پڼوټکے دسره یو لوے څادر چه د سر نه پکښې د خپو پورے پټیدے شی۔ بس خو په منځ کوره زړوکو کښې به د سړی حیثیت ته کتے شی۔ که غریب وی۔ نو تار ئے به ورکوی درمیانه۔ او که نه غریب وی۔ نه ډیر دولتمند۔ نو ټیمری درمیانه۔ او که ډیر دولتمند وی نو ښینے د متوسطے درجے۔

او ځینے عالمان وائی چه د ښځے حیثیت ته به کتے شی۔ بهرحال دومره خبره ضروری ده۔ چه د دغے متعے قیمت د پنځو درهمو نه کم نه وی۔ او که

---

[۱] خو څه اختلاف پکښې شته۔ منه ۱۲ [۲] فتح ۱۲ [۳] یعنی د یا د کم دریو روپو جوګ چاندی ۱۲
[۴] عالمګیری و درردر ۱۲ [۵] خو درے زړوکی د هغوی په عرف کښې وو۔ او د ځمونږ په عرف کښې پرتوګ هم ضروری دے۔ شامی ۱۲ منه

قیمت ئے دَ مهر مثل دَ ښځے نه زیاتیده نو زیاتے په سړی واجب نه دے - او که په خپله رضا ئے دَ ښځے نه هم اعلیٰ ورکړے - نو بیا ئے خپله ده -

**مسئله** :- که مهر ئے لس درهم یا ددے نه زیات مقرر کړے وُ - نو که په دیرلو خبرو کښې یو خبره وشوه - دغه ټول مهر به بنه موکّد او لازم شی - که خاوند ورسره صحبت وکه - یا ئے ورسره خلوت صحیحه وکه - یا په ښځه خاوند دواړو کښې یو تن مړ شو - او که په دے کښې یو خبره هم نه وه شوے - او طلاقه ئے کړه - نو ددغه مهر نیمه به لازمیږی او دَ خلوتِ صحیحه[۱] نه مراد دا دے - چه دواړه دَ تنهایئے په ځائے کښې داسے جمعه شوی وی چه څه خبره دَ جماع کولو نه مُتعه کونکی نه وی - نه طبعًا - نه شرعًا - نه حسًّا - نو که تنهائی ئے را غله - خو په دے دواړو کښې یو تن مریض وُ - چه قدرت دَ جماع ئے نه لاره - یا دَ رمضان ادائی روژه ئے په خوله وه - یا ئے دَ حج احرام تړلے وُ - یا دَ ښځے حیض وُ - نو په دے قسم صورتونو کښې خلوت معتبر نه دے - که صرف دا قسم خلوت ئے کړے وُ - بس - او بیا ئے طلاقه کړه نو نیم مهر به لازمیږی - او که دَ رمضان دَ ادائی روژے نه سوا بله روژه ئے وه - لکه قضاءِ دَ رمضان یا روژه دَ نذر یا نفل وغیره - او په داسے حالت کښې ئے ورسره خلوت وکه - نو دا خلوت صحیح او معتبر دے - دغه روژه مانع نه ده - نو په خاوند به پوره مهر لازمیږی - او که خاوند ئے[۲] نامردوو - یا مجبوب وُ (یعنے کوز سامان ئے پرے کړے شوے وُ) او خلوت ئے ورسره با قاعده وکه - لکه چه مخکښې ذکر شو - هم به پوره مهر لازمیږی - دارنګه که خاوند هجړا وُ - نو هم دغه حکم دے - غرض دا دے چه نامردی او هجړاتوب مانع نه شی کیدلے البته که په ښځه خاوند دواړو کښې یو نا بالغ وُ - جماع ئے نه شوه کولے - او دَ دے دواړو خلوت وشه - نو په دے سره پوره مهر نه راځی - یعنے نا بالغ والے مانع کیدلے شی -

**مسئله** :- که نکاح فاسد وُ - مثلاً په پټه ئے کړے وُ - ګواهان پکښې نه وُ - یا ښځه دَ بل دَ طلاق یا دَ وفات په عدت کښې وه - عدت ئے لا نه وُ پوره شوے - او ده ورسره نکاح وکه - یا دَ نکاح دَ صحت بل شرط پکښې فوت شوے وُ - په دے صورتونو کښې تفریق واجب دے - صحیح خبره دا ده - چه سړی ورسره جماع کړی وی که نه - تفریق دَ ښځے بل دَ حضور نه دغه نکاح فسخ کولے شی - بلکه واجب دی پے دَ پاره دَ دے چه وُ ځی دَ ګناه نه - او که دوی فسخ نه که - نو په قاضی ئے فسخ واجب دے -

نو که سړی ورسره جماع نه وه کړے - څه مهر لازم نه دے - که خلوت ورسره

---

[۱] الهدایه ۱۲ [۲] قاضیخان - ۱۲ [۳] الهدایه و قاضیخان - ۱۲ [۴] خانیه - ۱۲ [۵] بحرالرائق و درودرد - ۱۲

شوے وُ۔ نو صرف په خلوت سره هم دلته مهر نه لازمیږی۔ او عدت پے هم نشته۔ خلوت صحیح وی او که فاسد۔ هاں که جماع ئے ورسره کړے وه۔ نو عدت وله شته۔ کوم وخت چه سړی ته معلومه شوه۔ او نو به ئے ولیسته۔ یا دَ دواړو په مینځ کښ تفریق واوسئے شو۔ عدت به ئے د دغه وخت نه شروع کیږی۔ او دَدے دَ پاره په سړی بانْدے مهرمثل واجب دے۔ لیکن که په دغه نکاح کښ څه مهر مقرر شوے وُ۔ او مهرمثل دَ هغے نه زیات کیده۔ نو صرف مقرره مهر به ورکوی۔ بیا مهرمثل واجب نه دے۔

مسئله :۔ څو مره مهر چه معجّل وی۔ یا معجّل خو نه وی خو لے شوے۔ لیکن په عرف کښ معجّل گڼلے شی۔ یعنے زر ورکیږی۔ نیټه پکښ نه وی۔ که خاوند هغه لا نه ئ ادا کړے۔ او ښځه ئے غوښته۔ جماع وغیره ته ئے ځان نه نه پریښود۔ یا هغه چرته په سفر بوره۔ دا ورسره نه تله۔ نو ښځے لره دا حق شته۔ البته که هغه مهر ئے ادا شوے وی۔ بیا وله دَ منع دا حق نشته۔

مسئله :۔ که د نکاح په وخت څه مهر نه وُ ایښے شوے۔ لیکن بیا ښځے او خاوند په خپله رضا څه مقرر کړه۔ نو وس به مهرمثل نه ورکیږی۔ بلکه که جماع ئے ورسره وکړه۔ یا خلوت صحیحه یا په دے دواړو کښ یو مړ شو۔ نو څو مره چه دی په خپله رضا مقرر کړے هغه واجب دے۔

او که په دے خبرو کښ یو هم نه وه شوے۔ او طلاق ئے کړه۔ نو په خاوند بانْدے صرف یوه متعه لازمه ده۔ یعنے هغه زروکی چه دَ هغے بیان مینه شویئے او که په نکاح کښ باقاعده مهر ایښے شوے وُ۔ مثلاً پنځوس روپئے۔ بیا خاوند وګلیږد۔ په خپله رضائے وله په مهر کښ زیاتے وکه۔ مثلاً وے وئیل چه مهر دے دَ پنځوس په ځائے سل دے۔ سل روپئے به درکوم۔ نو دا زیاتے هم لازم شه۔ نو که خاوند ورسره جماع وکړه۔ یا خلوتِ صحیحه۔ یا په دے دواړو کښ یو تن مړ شه۔ نو پوره سل روپئے دَ مهر به واجب وی۔ او که په دے دریو خبرو کښ یوه هم نه وه شوے۔ او طلاق ئے کړه۔ نو صرف دَ اصل مهر نیمه به واجبیږی یعنے پنځویشت روپئے بس۔ ورستو چه کومه اضافه شوے وه۔ دَ هغے اعتبار په دے صورة کښ نشته۔

مسئله :۔ که ښځے په خپله رضا خاوند ته خپل مهر معاف که۔ نو ټول

---

له بحر د در ورد ۱۲ شه عالمگیری د در ورد ۱۲ که شامی ۱۲

یا څه حصه - نو څومره چه ئې معاف که - هغه معاف شه - بیائې د طلبولو حق نشته - او که خاوند مجبوره کړه - چه مهر دے معاف که - کنې نو زاره به دے شمه کم - یالاس څپه به دے پریکوم مثلاً - او هغه په دے قادر وو - او دے ورته د ویرے معاف که - نو په دے سره نه معاف کیږی - مهر د خاوند په ذمه واجب دے -

**مسئله**[۱]:- که مهر ئې داسې مقرر که - چه یو څاروے به درکم - یا بل داسې شے ئې مقرر که چه جنس ئې نامعلوم وُ - نو دا مهر مقررکول صحیح نه دے - بلکه مهرمثل به راځی - هاں که په نکاح کښې ئې دا مهر مقرر که - مثلاً چه یو اَس به درکم - یا دا چه یوه غوا به درکم - نو دا صحیح دی - دغه څاروے به یو ورکوی د متوسطے درجے یا د هغې قیمت - او که په نکاح کښې ئې مهر څه بل معیّن شے مقرر که - چه قیمت ئې د لس درهمو نه کم نه وُ - مثلاً - زمکه - باغ - مکان - دکان وغیره - نو دا صحیح دی کوم شے چه ئې مقرر کړے هغه به ورکوی -

**مسئله**[۲]:- که خاوند ښځے له څه شے ورکه - بیا د هغې په بابت کښې د دواړو اختلاف راغے - ښځه وئیل چه هغه هَدیَه وه - او خاوند وئیل چه مهر کښې مې درکړے وُ - نو خبره د خاوند معتبره ده سره د قسمه - او که شاهدان وی - نو شاهدان د ښځے غوره دی - لیکن که دغه شے د خوراک د پاره مهیّا شوے وُ - لکه وَرَته غوښه ډوډئ وغیره بیا خبره د ښځے غوره ده سره د قسمه - او که شاهدان وی نو شاهدان د خاوند غوره دی -

**مسئله**[۳]:- که د چالورے غوښتنه - څه څیزونه ئې وله ولیږل - خو بیا د هغې پلار په نِکاح ورنکړه - نو کوم شے چه ئې د مهر د پاره لیږلے وُ - هغه تے واپس آخستے شی - هله که چرے هغه موجود وی - او که هلاک شوے وُ - نو که مثلی وُ - د هغې مثل به تے اخلی - او که قیمتی وُ - نو قیمت - او کوم شے چه ئې وله په طور د هدیئې لیږلے وُ - هغه که موجود وی - یعنے هلاک شوے او هلاک کړے شوے نه وی - نو هغه تے هم بیرته اخستے شی -

| د مهرمثل بیان |
|---|

د ښځے په پلار کښے کښې کومه ښځه چه د دے په شان وی - د هغې مهر د دے مهرمثل دے -

یعنے د دے ښځے د پلار په قبیله کښې په داسې ښځه وکتے شی - چه څه رنګ

---

[۱] درمختار وردالمحتار ۱۲ [۲] عالمګیری ودرمختار ۱۲ [۳] شرح التنویر وردالمحتار ۱۲ [۴] درمختار وردالمحتار ومنتقی الابحر ۱۲

داده - دغه شان هغه وی - په دے خبره کښې چه هغه هم دَ نکاح په وقت کښې دَ دو مره عمر
وه - عقل او قابلیت او دینداری او مال او ښایست ئے دَ غه شان وو - هغه هم دَ دے ځائے
او سیدونکے وو -
غرض دا دے چه دَ هغې نکاح کوم وقت کیده - په هغې کښې هم هغه صفات موجود
وو - کوم چه وس په دے ښځه کښې موجود دی - او دَ هغې نکاح څه دَ پیرېخو اهم نه وی شوے
او دَ خاوند صفات ئے هم دَ دے خاوند په شان وی - نو دَ هغې ښځې چه څو مره مهر وُ -
هغه دَ دے ښځې مهر مثل دے - او دَ پلار دَ قبیلے دَ ښځو نه مراد دَ دے خوئندے او
ترورانے یعنے دَ پلار خوئندے تره لونړه وغیره دی - او په مهر مثل کښې دَ مور
مهرله اعتبار نشته - هاں که مورئے وه دَ پلار دَ قبیلے نه - مثلاً دَ دے پلار دَ خپل
تره لور واده کړے وه - نو بیا دَ دے دَ مور مهرله اعتبار ورکیدے شی - او که دَ پلار په
قبیله کښې دَ دے په شان ښځه نه وه - نو کومه قبیله چه دَ پلار دَ قبیلے په مثل وی -
په هغې کښې دے وکتے شی -
او په مذکوره اوصاف سره دَ مهر مثل دَ ثبوت دَ پاره دَ دوو سړو - او دَ دوو ښځو
خبر ضروری دے - چه ثقه وی - او خبر ورکوی په لفظ دَ اشهد سره - او که ثقه شاهدان
نه وُو - نو خبره دَ خاوند معتبره ده سره دَ قسم -

**دَ بیبیانو برابری**

دَ کوم سړی چه دوه ښځې وی - په هغه باندے دَ دوی په مینځ کښې
برابری واجب ده - څو مره نفقه چه یوے له ورکوی - هغه هُومره به بلے له ورکوی -
خوراک - جامه - دَ استوګنے ځائے وغیره - په هر څه کښې دَ دو اړو حق یو شان دے - دا
رنګ په شپه تیرولو کښې هم برابری واجب ده - یوه شپه دے دَ یوے سره وی - بله
دَ بلے سره - یا دوے شپے دَ یوے سره - دوے دَ بلے سره -
غرض دا دے چه مساوات دے کوی - لیکن په جماع کښې برابری ضروری نه ده -
بلکه مستحب ده - خو هغه بله دے دَ جماع نه بالکل محرومه کوی هم نه - دا رنګ په محبت
کښې برابری هم ضروری نه ده - ځکه چه مینه دَ زړه کار دے - خو په شپه تیرولو
کښې برابری ضروری ده - که یوے له دَ شپے تیرولو دَ پاره سره دَ ماښام راغے - او بله
شپه بلے له خو لیس دماسختن نه - نو ګنهګار شه - ځکه چه دے له هم دَ شپے تیرولو دَ پاره سره
دَ ماښام راتلل ضروری وُو - او که دَ ورځے دَ یوے سره زیات کیناستو او بلے سره لږ -

ــــــــــــــــ

له بحر رائق در درورد ۱۲ ــ سه آزادے یعنے وینزه پکښې نه وی - ۱۲

نو خیر دے۔ البته که سرے داسے وو۔ چه د ښځے هډو وزګاریده نه۔ صرف د ورځے
په کور نه راته۔ لکه څوکیدار او پهره دار وغیره۔ نو د هغه د پاره د ورځے د برابرئ حکم
دے۔ په حدیث[1] شریف کښ راغلی دی چه "د چا دوه ښځے وی۔ او دے برابری نه کوی
نو د قیامت په ورځ به داسے راځی چه یوه اړخ به ئے پریوتے وی۔" ختم شه مضمون د حدیث
او که د شپې[2] درے ښځے وے یا څلور۔ نو د هغے هم دغه حکم دے۔ چه برابری واجب
ده۔ او د جینئ او د کُنډے حکم په برابرئ کښ یو شان دے۔ او کومه چه ئے پخوا واده
کړی وی او کومه چه ئے وس واده کړی وی۔ د دے دواړو حکم هم یو دے۔ برابری واجب
ده۔ فرق پکښ نشته۔

بهرحال د برابرئ کوم حکم چه بیان شه۔ هغه عام دے که خاوند بالغ وی یا
مراهق۔ اګرکه نامرد وی۔ یا جوړ نه وی۔ هم به په شپه تیرولو کښ برابری کوی
او که یوه ښځه لیونئ وه۔ خو د ضرر خوف ترِے نه وَ۔ یا حائضه وه۔ یا ئے نفاس وَ۔ یا
نابالغه مراهقه۔ یا ئے په اندام مخصوصه کښ څه نقص وَ۔ یا ناجوړه وه۔ بهرحال
د شپے په تیرولو کښ برابری ضرور ده۔ او که دواړو ښځو له ئے وار مقرر که۔ بیا یوه
د ګکیده خپل وارئے بلے ته پریښوده۔ نو جائز دی۔ لیکن که بیا ئے رجوع کوله۔ نو
کولے شی۔ او د برابرئ کوم حکم چه ذکر شه۔ دا په حضر کښ دے۔ په سفر کښ نه دے
یعنے خاوند که یوه د ځان سره په سفر بیائی۔ نو د هغه خوښه ده۔ هره یوه چه بیائی۔
په دے کښ په برابری ضروری نه ده۔ خو غوره دا ده چه خسنړے وکی۔ د پاره د
دے چه بله خفه نه شی۔

**د کافرانو د نکاح بیان**

کافران[3] چه د خپل مذهب په لحاظ سره څرنګ نکاح وکی۔ نو
شریعت هم هغه برقرار ساتی۔ یعنے دواړه که یو ځائے اسلام راوړه۔ نو هغه نکاح
ئے باقی دے۔ نوی نکاح تړلو ته ضرورت نشته۔ او که دواړه محرم وُو۔ مثلاً مجوسی ګکیدلے
وُ۔ خپله لورئے په نکاح اخستے وه۔ یا بله داسے ښځه چه هغه په شریعت کښ د محرماتو نه وه۔
یا ئے دوه خوینده په یو عقد کښ اخستے وے۔ یا ئے پنځه ښځے په یو عقد کښ۔ نو د دے
ټولو صورتونو حکم دا دے چه په مینځ کښ به ئے د جدائیئ حکم وکړے شی۔ او که دوه خوینده
ئے اخستے وے په جدا جدا عقد سره۔ نو آخری به ترے جدا کړے شی۔ دا رنګ که پنځمه ښځه
ئے په جدا عقد سره آخستے ده۔ نو هغه به ترے جدا کړے شی۔ فقط۔

---

[1] ترمذی، ابوداؤد، نسائی او ابن ماجه ۱۲ [2] آزاد دے یعنے وینځه پکښ نه وی ۱۲ [3] شرح الهدایه و در مختار ورد المحتار ۱۲

**مسئله**:- که ښځه خاوند کافران وَو غیر کتابي - او یو تې مسلمان شه - یا دَ کتابي ښځې اسلام راوړه - او اسلام ئې پیژندہ - نو حکم دا دے چه هغه بل ته به اسلام پیش کړے شي - ورنه به او ویلے شي - چه اسلام راوړه - نو که مسلمان شه - نکاح ئې بوحال دے - او که انکار ئې وکه - قاضي به تے ښځه جدا کی - او که انکار ئې ونه که - بلکه چپ شه - نو احتیاطاً دِ ورته دوه ځله بیا اسلام پیش کی - که بیا ئې هم څه وُ نه وے - یا انکار ئې وکه - قاضي به تے ښځه جدا کی - نکاح ئې لاړہ - او که خاوند ئې نا بالغ وُ - لیکن دَ تمیز خاوند وُ - ښځه ئې مسلمانه شوه - نو ده ته به هم اسلام پیش کیږي - دا رنګ جینئ او که تمیز نه لا نه وُ رسیدلی - نو انتظار به کیږي - چه عقل او تمیز ته اوُرسي - هله به ورته اسلام پیش کړو - او که لیونے وُ - نو دَ ښځه کیدو اِنتظار به ئې نه کیږي - بلکه دَ هغه مور او پلار ته به اِسلام پیش کړو - نو که یو یکښې اسلام راوړ - لیونے به دَ هغه تابع او مسلمان وګڼلے شي - نِکاح به ئې برقرار وي - او که پلار ئې نه وُ - قاضي به ورله وصي ودروي - او حکم دَ جدا ئیئ به پے وکی -

له شرح التنویر ۱۲

# کتاب الرضاع

## دَ تِی ورکولو او دَ روږدلو مسئلے

**مسئله[1]**: که دَ بچی پلار مالدار وی. چه دَ ده دَ پاره ئے دائی نیوے شوه. او ده دَ بلے ښځے دَ تِی روږدلو نه څه پرهیز نه کاوُ. نو که مور ورله تے نه ورکوی. لازم په نه دی. او که بچے او پلار ئے غریب وی. یا مالدار وی. خو دائی نه شوه مُندے. یا مُندے شوه. خو بچے بے دَ مور نه دبلے ښځے تے نه روږده. نو په مور ئے لازم دی چه تے وله ورکوی او پردی بچی له بے دَ خاوند دَ اجازت نه تے ورکول مکروه دی. لیکن که دَ بچی دهلاکت ویره وه. په داسے وخت کښ اجازت اخستو ته ضرورت نشته.

**مسئله[2]**: دَ تی ورکولو انتهائی موده څو مره ده. دَ دغے نه پس بچی له تے ورکول جائز نه دی. او که دغه موده لا نه وه پوره شوے. او بچے ئے د تی نه پریکاوُ. او بچی څه خوراک سکل کول. نو خیر دے پریکوے ئے شی.

**مسئله[3]**: اکثر عالمان دَ صاحبینو په قول فتویٰ ورکوی چه دَ تی ورکولو انتهائی موده دوه کاله ده. او څینے عالمان دَ امام صاحبؒ په قول فتویٰ ورکوی چه انتهائی موده ئے دوه نیم کاله ده. بهرحال دَ رضاعت په وجه دَ بعضے کسانو سره نکاح حرامیږی. دا حکم هله دے که چرے تے ئے په مذکوره موده کښ څښلے وی. او که دوه کاله ئے شوی وی. او دوه نیم لا نه وی پوره شوی. په داسے وخت کښ ئے دَ یوے ښځے تے روږده. نو صاحبینؒ وائی چه په دے سره مذکوره حرمت نه راځی او امام صاحبؒ وائی چه حرمت به راځی. او که پس دَ دونیمو کالو نه ئے دَ یوے ښځے تے روږده. نو په دے ښځه نه کیږی. یعنے دغه ښځه ئے مور نه گرځی. او مذکوره حرمت به نه راځی. په دے خبره دامام صاحبؒ او دَ صاحبینوؒ اتفاق دے.

**مسئله[4]**: هنده دیره ښینځه ده. دَ زید دَ ښځے تے روږده. نو هنده به زید او دَ زید په پلار او په نیکه او دَ زید په خوئ او په نوسی کړوسی حرامه شوه. یعنے

---

[1] شرح التنویر ورد المحتار ۱۲ [2] بحر رائق ۱۲ [3] شرح البدایه وشرح التنویر ۱۲ [4] هدایه ۱۲

نکاح ئې ورسره نه کيږي - بلکه دَ زيد کوم اولاد چه وي دَ بلې ښځې نه دَ هغوئ دَ پاره هم
هنده حرامه شوه -

مسئله[1] :- فرض که چه دَ زيد يوه ښځه ده نوم ئې اديبه ده - بله ښځه ئې
طلاق ته کړې ده - نوم ئې دے لبيبه - او بکر ورورکے هلک دے - دَ اديبې تئ ئې رودلے وُ - نو
زيد دبکر رضاعي پلار دے - بکر لبيبه په نکاح نه شي آخستے - ځکه چه دا ئې دَ پلار ښځه ده -
دارنګ که بکر ونکيد خپله ښځه ئې طلاق ته کړه - يا ئې ښځه کُنډه شوه - او زيد په نکاح
آخسته - نو نه شي آخستے ځکه چه دا ئې نګور ده - دارنګ بکر دَ زيد خور نه شي آخستے برابره
خبره ده چه دَ زيد نسبي خور وي او که رضاعي - ځکه چه هغه دَ بکر ترور ده - او زيد دَ بکر
خور په نکاح آخستے شي - دبکر خور نسبي وي او که رضاعي -

مسئله :- که هلک او جينئ په ورکوتوالي کښې دَ يوې ښځې تے رودلے وُ - نو دې
دواړه خور او ورور دي - نکاح ئې نه کيږي - برابره خبره ده چه تے ئې يو ځائې رودلے وي
او که نه - نو که مثلاً يو مينه دَ هندے تے رودلے وُ - او بل لس کاله پس پيدا شه - دَ هندے
تے ئې ورودو - نو دې دواړه هم خور او ورور دي - بلکه ددے دويم بچي دَ تې رودلو په وقت
کښې که دَ هندے هغه خاوند نه وي - کوم چه دَ اول بچي د تې رودلو په وقت کښې وُ - بلکه دويم
وي نو هم دغه حکم دے -

مسئله :- که بچي د بلې ښځې تے ورودو - نو دغه ښځه ئې مور شوه - او دَ دغه ښځې
دَ کوم خاوند دَ بچي چه دغه پيئ وي - هغه ئې پلار شه - او هغه اولاد دَ ده رضاعي خويندے
رونړه شو - نکاح ئې ورسره نه کيږي - لکه چه مخکښې ذکر شوي دي - او کوم کسان چه
دَ نسب په سبب حرام دي - هغه دَ رضاعت په سبب هم حرام دي - خو بعضې صورتونه
داسے شته چه دَ رضاعت په لحاظ سره جائز دي - او دَ نسب په لحاظ سره حرام - او دَ
دے دريں قسمونه دي -

يو قسم دادے چه په رضاعت کښې دَ خور مور جائزه ده - او په دے کښې درے
صورتونه دي - يو دا چه مثلاً دَ زيد رضاعي خور وي - دَ هغې مور وي نسبي چه زيد ئې تے
نه وي رودلے - نو هغه زيد له حلاله ده - دويم دا چه دَ زيد نسبي خور وي او دَ هغې مور
وي رضاعي نو هغه زيد له حلاله ده - دريم دا چه دَ زيد رضاعي خور وي - او دَ هغې
ځان له بله رضاعي مور وي - نو زيد له حلاله ده - او څرنګ چه دَ خور مور جائزه ده په رضاعت

ـــــ

[1] هدايه و در مختار ۱۲ [2] ملتقی الابحر و در و ر د ۱۲ [3] شرح التنوير ورد المختار ۱۲

کبنې دا رنګ دَ دور مور هم جائیزه ده - او په دے کبنې هم درے صورتونه دی - لکه چه طریقه ئے بیان شوه -

**دوئیم** قسم دادے چه دَ خوئ خور جائیزه ده رضاعاً - او په دے کبنې هم درے صورتونه دی - یو دا چه دَ زید دَ رضاعی خوئ نسبی خور زید له جائیزه ده - دوئیم دا چه دَ زید دَ نسبی خوئ رضاعی خور زید له جائیزه ده - دریئم دا چه دَ زید دَ رضاعی خوئ رضاعی خور زید له جائیزه ده - او شرنګ چه په رضاعت کبنې دَ خوئ خور جائیزه ده - دا رنګ دَ لور خور هم جائیزه ده په مذکوره دریؤ واړو طریقو سره -

**دریئم** قسم دادے چه دَ خوئ نیا جائیزه ده رضاعاً - او په دے کبنې هم درے صورتونه دی - یعنې دَ زید دَ رضاعی خوئ نسبی نیا - او دَ زید دَ نسبی خوئ رضاعی نیا - او دَ زید دَ رضاعی خوئ رضاعی نیا زید له جائیزے دی - او شرنګ چه په رضاعت کبنې دَ خوئ نیا جائیزه ده دا رنګ دَ لور نیا هم جائیزه ده - په مذکوره دریؤ واړو طریقو سره -

**څلورم** قسم دا دے چه په رضاعت کبنې دَ تره مور - دَ ماما مور - او دَ ترور مور جائیزے دی - یعنې زید له دَ رضاعی تره - او دَ رضاعی ماما - او دَ رضاعی ترور نسبی مور جائیزه ده - دا رنګ دَ نسبی تره او دَ ماما او دَ ترور رضاعی مور ورله هم جائیزه ده - دا رنګ د رضاعی تره او دَ رضاعی ماما او دَ رضاعی ترور رضاعی مور ورله هم جائیزه دَ

**پنځم** قسم دادے چه دَ خپل ولد[1] ترور جائیزه ده د رضاعت - او په دے کبنې هم درے صورتونه دی -

**شپږم** قسم دادے - چه دَ خپل ولد دَ ترور[2] لور جائیزه ده رضاعاً -

**اووم** قسم دادے چه دَ خپل ولد خورزه جائیزه ده رضاعاً -

**اتم** قسم دادے چه دَ خپل ولد دَ اولاد مور جائیزه ده رضاعاً -

دا ټول بیان دَ سړی په حق کبنې و - چه دَ رضاعت په لحاظ سره ورله دَ مذکوره ښځو نکاح جائیز دے - او په نسب کبنې ورله دا قسم ښځے حرامے دی - او دَ ښځے په حق دَ مذکوره قسمونو په طریقه هم دا رنګ بیان دے - چه ښځے له په رضاعت کبنې دَ ښځے دَ رور پلار او دَ خور پلار جائیز دے -

دا رنګ دَ ښځے دَ خوئ رور - او دَ لور رور - او دَ ښځے دَ خوئے نیکه - او دَ لور نیکه او دَ ښځے دَ تره پلار - او دَ ښځے دَ ماما پلار - دَ ښځے دَ ولد ماما - دَ ښځے دَ ولد دَ مور خور

---

[1] ولد عام دے که خوئ وی او که لور ۱۲ منه [2] دَ ترور نه مراد دَ پلار خور ده ۱۲

ئې. د هغې د ولې خورئې. د هغې د ولد د ولد پلار.

**مسئله**[1]: د زینب یو ځوئې دے بکر. هغه د کلثوم تے لعدلے وُ. نو په بکر باندے
خو کلثوم حرامه ده. لیکن په زینب نه ده حرامه. یعنے که آزاده وی. او زینب ئې په نکاح
اخستل غواړی اخستے شی.

**مسئله**[2]: نسیم او وسیم دواړه رونړه دی. د نسیم[3] یوه رضاعی خور ده. هغه
د نسیم د پاره خو حرامه ده. لیکن د وسیم د پاره نه ده حرامه.

**مسئله**[4]: د رضاعت ثبوت د یو سړی په خبر سره او دارنګ صرف د ښځو په
خبر سره نه راځی. بلکه د دوؤ ثقه سړو یا د یو دیندار سړی او د دوؤ دینداره ښځو
شاهدی ضروری ده. او که دا شهادت نه وُ. او صرف د یو سړی په وینا سره یا صرف
د ښځو په وینا سره زړه نه پریوته چه شاید دا خبره به شوی وی. نو د شک ځائے غوره
نه دے. دغه جینئ دے ولے نه غواړی. لیکن که وئے غوښته نکاح ئے کیږی.

**مسئله**[5]: د بچی کیهے ته چه پئ لاړه. نو د رضاعت په سبب چه د چا سره
نکاح حرامیږی. هغه حرمت ثابت شه. برابره خبره ده چه پئ لږ وی او که ډیر
او که بچی په تی خوله نه وی ایښی. بلکه د ښځے د سینے نه پئ اخستے شوی او د هغه په حلق
کښی اچولی شوی وی نو هم مذکوره حرمت ثابتیږی. او که د بچی په پوزه کښی ئے
وڅڅول او کیهے ته ئے لاړه نو هم دغه حکم دے. البته[6] په غوږ کښی د څڅولو
اعتبار نشته.

**مسئله**[7]: که د ښځے پئ د اوبو سره یو ځائے کړے شو. یا دارو سره او بچی وسکال
نو که پئ زیات وُو د اوبو وغیره نه. یا ورسره برابر وُو. نو د کومے ښځے د سینے چه دغه
پئ دی. هغه د دغه بچی مور شوه. او حرمت با قاعده ثابت شه. او که پئ کم وُو په
دغه نه کیږی. حرمت پے نه راځی.

دارنګ که د ښځے پئ مثلاً د بیزے په پیو کښی شریک بچی له ورکړے شو. او هغه تیر
کړه. نو که د ښځے پئ زیات وُو د بیزے د پیو نه یا ورسره برابر وُو نو حرمت پے راځی. که نئ نو نه

**مسئله**[8]: که د باکرے جینئ عمر کم نه کم نهه کاله وو. او د هغے په سینه کښی
پئ وشو. هغه یو بچی ددروده. نو په دے سره هم حرمت با قاعده راځی. دارنګ که

---

[1] بحرالرائق ۱۲ [2] هدایه و بحر ۱۲ [3] نسیم او دغه جینئ دواړو د یلے ښځے تے رودلے وُ. یا د دغه جینئ د مور تے ئے رودلے وُ ۱۲ [4] صنه [5] شرح البدایه و در مختار ۱۲ [6] بحرالرائق و در مختار ۱۲ [7] عالمګیری
[8] بحرالرائق و عالمګیری ۱۲ [9] قاضیخان و هندیه ۱۲

دَ مرے بنځې پېٔ بچي تیر کړه . نو هم ئے دغه حکم دے . برابره خبره ده چه دغه پېٔ دَ هغې دَ مرګ نه مینه اغستی شوی وی . اوکه بیس .

**مسئله** :- که دوؤ ورودُ یوے بیزے پېٔ وسکل یا دَ غواو غیره نو په دے هیڅ نه کیږی . یعنے رضاعی خورولے او ورورولے پے نه راځی . دارنګ که دَ سړی په سینه کښ پېٔ وشو . او بچی ورودہ . نو په دے سره دغه سړے پلار کیږی نه .

**مسئله** :- که سړی دَ خپلے بنځې تے ورودہ . نو په دے سره هم څه نه کیږی . یعنے دَ رشتو حرمت پے نه راځی . خو ګنهګار شه . ځکه چه دَ رضاعت دَ انتهائی موده نه پس وله دَ انسان پېٔ بے دَ شرعی اجازت نه جائز نه دی .

---

له شرح التنویر ۱۲

# کِتَابُ الطَّلَاقِ

دَ طلاق بیان | طلاق[1] دَ هغه خاوند واقع کیږی. چه بالغ عاقل وی. او خپله ښځه طلاقه کی په ویښه. نو دَ نابالغ اودَ لیونی په طلاق سره ښځه نه طلاقیږی. او که دَ عاقل بالغ خو په خوب کښے دَ خولے نه ووتل. مثلاً چه خما ښځه طلاقه ده. نو په دے سره هم طلاق نه واقع کیږی. او که عاقل بالغ دَ شرابو په نشه کښ طلاق وا چول نو نشه والے مانع نه دے. طلاق واقع کیږی.

**مسئله**[2]:- که ښځه حُرّه وه یعنے وینځه نه وه. آزاده وه. نو خاوند وله زیات نه زیات درے طلاقه ورکولے شی. نو که څلور ښځه طلاقه ئے ورکړه یا زیات. هم به صرف درے واقع کیږی. اودَ دریځ دَ پاره دَ دوؤ نه زیات نشته. او ښځه خاوند له طلاق نشی ورکولے. بلکه دَ طلاق ورکولو اختیار خاوند له دے. که ده طلاقه کړه طلاقه شو. اګر که هغه نه منی.

**مسئله**[3]:- طلاق په درے قسمه دے. یو رجعی. بل بائن. بل مغلّظ. نو که رجعی طلاق ئے ورکړے وو یو یا دوه. او بیا پښیمانه شه. نو په عدت کښ دننه ښځے ته رجعت کولے شی. نوی نکاح تړلو ته حاجت نشته. هاں که په عدت کښ ئے رجوع ونکړه. نو دَ عدت په تیریدلو ئے نکاح مات شه. او س ئے بے دَ نکاح نه نشی ښځه کیدے. او که طلاق ئے بائن ورکړے وُ. یو یا دوه. نو رجعت ورته نشی کولے. نه په عدت کښ. او نه پس. هاں که نکاح ورسره تړی. او ښځه په راضی وه. نو تړلے شی برابره خبره ده چه عدت تیر شوے وی. او که لا نه. او که طلاق ئے مغلّظ ورکړے وُ. یعنے درے طلاقه. نو په دے صورت کښ ورته رجوع کولے شی. او نه ورسره بے دَ تحلیل نه نکاح تړلے شی.

**مسئله**[4]:- که په صریح لفظ سره ئے طلاق واچول مثلاً ښځے ته ئے اُووے چه ما طلاقه کړے. یائے اُووے چه خما ښځه په ما طلاقه ده. نو په دے ویٔنا سره طلاق واقع شه. نیت ئے وی او که نه. برابره خبره ده چه قصد ئے ئے وی او که

---

[1] هدایه ودرر [2] شرح التنویر ورد المحتار ۱۲ [3] شرح الهدایه ۱۲ [4] تبیین الحقایق ۱۲

په ټوټه - يو طلاق واقع شه رجعي - او که دوه ځله ئې اووئے - يا ئې ورته اووئے چه ته طلاقه
ئې په دوه طلاقه نو دوه واقع شو - او که درې ځله ئې اووئے - يا ئې د درېو لفظ ذکر که
چه ته طلاقه ئې په درېو طلاقو - نو درې واړه واقع شو - مغلّظه شوه -

مسئله :- کوم وخت چه د خاوند د خولې نه دا اوختل چه په ما ځما ښځه
طلاقه ده - او دومره په زوره ئې اووئے چه په خپله ئې واورېده - بس طلاق واقع
شه - برابره خبره ده چه بل چا آورېدلې وي - او که نه - او د ښځې په مخکښې وي او که
نه - او برابره خبره ده - چه په حالت د غصې کښې ئې وئيلې وي - او که په غير د
غصې کښې -

مسئله :- که سړي اووئے چه په ما ښځه طلاقه ده - او د ده يوه معلومه
ښځه وه - نو هغه طلاقه شوه - او که دوه وي يا زياتې نو هم طلاق واقع شه - خو په
دغه ښځو کښې به وس يوه دے متعينه کوي - چه هغه داده

مسئله :- د زيد صرف يوه ښځه ده - نوم ئې حره دے - قرض خواه ونيو - نو
ده ورته په دروغه ووئے چه وس دا ځنې يوه پيسه هم نشته - که وي نو په ما دے
ځما هغه ښځه طلاقه ئې - نو په دے سره ئې ښځه نه طلاقيږي -

مسئله :- که خاوند ښځې ته اووئيل چه ځه طلاقه شه - يو طلاق رجعي
واقع شه -

مسئله :- که زيد خپلې ښځې ته اووئے چه وا طلاقې - نو په دے سره هم
واقع کيږي - ليکن که دا ښځه ئې وا د بل منکوحه وه - او هغه طلاق نه کړے وه - او
زيد اووئيل چه ځما مطلب په دے وينا سره صرف هغې خبرې ته اشاره ده - نو
دياناً نه واقع کيږي - بلکه صحيح قول دادے چه په دے صورت کښې قضاءً هم نه واقع
کيږي -

مسئله :- که چا خپلې ښځې ته اووئے چه ته طلاقه ئې - ته طلاقه ئې - ته طلاقه
ئې - يعني درې ځله ئې اووئے - نو درې طلاقه واقع شو - لکه چه مخکښې ذکر شوي دي -
ليکن که د خاوند مطلب په دغه دوېمه او درېمه وينا سره دوېم او درېم طلاق نه وي
بلکه د يو طلاق د تاکيد د پاره ئې د طلاق لفظ مکرر کړے وي - نو دياناً صرف يو طلاق
واقع شه - خو قضاءً درې واړه واقع دي - يعني که خبره قاضي ته وړاندے نه کړے شوه - او د

ل درمختار وشامي ١٢ ٢ شرح التنوير ١٢ ٣ هنديه ودرمختار وشامي ١٢ ٤ شرح التنوير ورد المحتار ١٢

ته مقصد په اقع کښې صرف تاکید و۔ نو صرف یو واقع شوے دے وخدائی تعالی په نیز دے نو دواړه
آزاده ده۔ او که خبره قاضی ته پیښه شوه۔ او ثابته شوه چه ده داسے ویلی دو۔ نو هغه
به حکم کوی۔ چه درے واړه طلاقه واقع شوی دی۔

مسئله :۔ که د طلاق سره ئے یو لوئ وصف ذکر که۔ مثلاً خاوند ښځے ته
اووے چه ته طلاقه ئے په سخت طلاق سره۔ یا په ناکاره طلاق سره۔ یا په شیطانی
طلاق۔ یا د غره هومره غټ۔ یا ډک کوره یا او کود طلاق۔ یا پلن۔ نو د دے ټولو صورتونو
حکم دا دے۔ چه په دے سره یو طلاق بائن واقع کیږی۔ او که نیت ئے د دریو کړے و۔
نو درے به واقع شی۔

مسئله :۔ د خط په ذریعه هم طلاق واقع کیږی۔ نو که زید خپلے ښځے ته با قاعده
طلاق نامه اولیږله۔ نو هغه په دے سره طلاقه شوه۔ نیت ئے وی او که نه۔ او که خطے
ورته با قاعده ونه لیکه۔ بلکه په کاغذ وغیره ئے مثلاً داولیکل چه په زید ښځه طلاقه
ده۔ او دا خط لو ستے کیدے شه۔ نو که په نیت د طلاق ئے لیکلے وی۔ نو طلاق واقع
شه۔ که نه ئی نو نه۔ او که د اوبو د پاسه یا په هوائے دا رنګ ولیکل۔ یا په بل داسے
شی چه بیا خط نه شه لوستے کیدے۔ نو په دے څه نه کیږی۔ نیت ئے وی او که نه۔ هاں که
په ژبه ئے با قاعده ویلی وی۔ نو طلاق به واقع شی۔

مسئله :۔ که په یو طلاق ئے ښځه طلاقه کړه۔ نو د کومے پورے چه ئے دغه ښځه
په عدت کښې وی دویم او دریم طلاق وله هم ورکولے شی۔ یعنے که ورئے که نو واقع به شی۔

مسئله :۔ که چا ښځے ته اووے چه طلاقه به دے کم۔ نو په دے نه طلاقیږی۔
دارنګ که ئے ورته اوویل چه تاکه فلانے کار وکه۔ نو په دے طلاقه نه کم۔ او هغے دغه کار وکه
نو په دے سره هم نه طلاقیږی۔ البته که داسے ئے ویلی وی۔ چه تاکه فلانے کار
وکه۔ نو طلاقه ئے۔ نو د دغه کار په کولو سره به طلاقه شی۔

مسئله :۔ که چا خپلے ښځے ته اووے چه ته طلاقه ئے انشاء الله تعالی۔ نو په
دے سره نه طلاقیږی۔ خو هله که د انشاء الله تعالی جمله ئے ورسره متصل ویلی وی۔
با قاعده۔ دارنګ که چا اووے۔ که د خدائے رضا وی نو ته طلاقه ئے۔ نو په دے سره هم نه طلاقیږی

مسئله :۔ طلاق ورکول په دوه قسمه دی۔ یو صریح دی بل کنائی۔ صریح ئے ته
وائی چه په ښکاره لفظ سره طلاق ورکی۔ یعنے داسے صاف لفظ اووائی چه به د طلاق

له هندیه و مجمع الانهر ۱۲ ؎ هندیه و خلاصه ۱۲ ؎ در و رد ۱۲ ؎ تنقیح حامدیه ۱۲ ؎ درمختار و شامی ۱۲
؎ در مختار و رد المحتار ۱۲

نه ئې بل څه معنی نه وي. مثلاً اووائي چه ته طلاقه ئې. یا اووائي چه ځما ښځه طلاقه ده یا ورته اووائي چه ما طلاقه کړے وغیره وغیره.

او کنائي دے ته وائي چه په مجمل لفظ سره طلاق ورکي. یعنې داسے لفظ استعمال کي چه د معنې نه طلاق هم مراد اخستے شي. او بله معنې ئے هم مراد اخستے شي. مثلاً اووائي چه ته ما جدا کړے. نو دا معنې ئے هم کیدے شي چه د نکاح نه مې جدا کړے. او دا هم کیدے شي. چه په کور کښې مې جدا کړے. او پاتے شوه دا خبره چه په کنائي سره طلاق په کوم صورت کښې د طلاق واقع کیږي او په کوم کښې نه واقع کیږي. نو د دے معلوملو د پاره مینه د دوؤ خبرو تمهید ضروري دے.

یوه دا چه حالتونه درے دي. یو حالت د رضا دے. بل حالت د غصے دے. بل حالت د مذاکرے د طلاق دے. دویمه دا ده چه کنائي الفاظ درے قسمه دي. یو قسم هغه دے چه د جواب او د رد دواړو احتمال لري. مثلاً خاوند ښځې ته اووائي چه پاسه اوځه. دنګ دِ پناه که. ورکه شه. دا الفاظ د رد او د جواب احتمال په دے وجه لري. چه ښځې که خاوند ته اووے چه ځما ستا کنډران ګران دے. نه کیږي. ما طلاقه که. او خاوند اووئیل چه پاسه اوځه. وغیره. نو دا مطلب هم کیدے شي چه طلاقه مې کړے. پاسه ځه وغیره نو جواب شه. او دا مطلب هم کیدے شي. چه طلاق نه درکوم. پاسه اوځه وغیره نو رد شه

دویم قسم هغه دے چه د جواب او د کنزلو دواړو احتمال لري. مثلاً خاوند ښځې ته اووے چه ته خالي ئې. نو دا مطلب ئے هم کیدے شي چه ته ځما د نکاح نه خالي ئې. او دا مطلب هم کیدے شي. چه ته د خیر او برکت نه خالي ئې. سپیره ئې.

دریم قسم هغه دے چه صرف جواب وي. او د رد او د کنزلو احتمال پکښې نه وي. لکه خاوند ښځې ته اووائي چه ما ته پریخودے. ته آزاده ئې وغیره. نو د دے هم دوه مطلبه کیدے شي. یو دا چه ما طلاقه کړے. پریښے مې خودے. بل دا چه څه مې درته ونه وئیل. هسے مې پریخودے. دارنګ ته آزاده ئې. یعنې ځما د نکاح نه. یا ته آزاده ئې. یعنې وینځه نه ئې. نو د اول قسم حکم دا دے چه په دغه الفاظ سره طلاق نه واقع کیږي. د کوم پورے چه ئې په نیت د طلاق نه وي وئیلي. برابره خبره ده چه په حالت د رضا کښې ئے وئیلي وي. او که په حالت د غصے کښې. او که په حالت د مذاکرے د طلاق کښې. او د دویم قسم حکم دا دے چه دغه الفاظ که ئې په حالت د رضا یا په حالت د غصے کښې وئیلي وي. نو موقوف دي په نیت. که په دے وینا سره ئې نیت د طلاق وُ. نو واقع شه. کني نو نه

اوکه په حالت د مذاکرے د طلاق کښې ئې ویلی وی۔ نو بے نیت نه هم واقع کیږی۔ او دریئم قسم حکم دا دے چه په حالت د رضا کښې ئې دغه الفاظ که په نیت د طلاق ویلی وی۔ واقع به شی۔ کنی نو نه۔ او په حالت د غصے کښې او په حالت د مذاکرے د طلاق کښې بے د نیت نه هم واقع کیږی او د کنائی په الفاظ سره چه کوم طلاق واقع کیږی۔ هغه بائن وی۔ لیکن ځنے الفاظ د کنائے داسے هم شته۔ چه هغے ته ملحق بالصریح ویلے شی۔ او په هغے سره واقع کیږی رجعی طلاق۔

**مسئله**: که چا خپله ښځه په دریؤ طلاقو طلاقه کړه۔ نو وس ورله بے د تحلیله نشی حلاله کیدے۔ برابره خبره ده چه درے طلاقه ئې یکدم اچولی وی۔ مثلاً ویلی وی چه ته په درے طلاقه، طلاقه ئې۔ یا جدا جدا۔ مثلاً ویلی وی چه ته طلاقه ئې۔ طلاقه ئې۔ طلاقه ئې۔ یا ئې یو طلاق نن اچولے وی۔ یو بیګا ، بل ئې بله ورځ۔ یا یو طلاق په یوه میاشت کښې۔ بل په بله کښې۔ بل په بله کښې۔ یعنی په عدت کښې دننه۔ بلکه که مُوده پس درے پوره شی۔ نو هم دغه حکم دے۔ مثلاً یو طلاق ئې رجعی ورکه نو بیا ئې ورته په عدت کښې رجوع وکړه۔ کال دوه تیر شو۔ بیا ئې یو طلاق رجعی ورکه۔ بیا ئې رجوع وکړه ځه موده پس ئې دریم طلاق ورکړه۔ نو لس کاله پوره شو۔ وس ئې بے حلالے نشی اخستے۔ دارنګ که څوک وګکیږی۔ خپله ښځه ئې په یو طلاق بائن طلاقه کړه۔ بیا ئې په نکاح واخسته ځه موده پس ئې بیا طلاق بائن ورکه۔ بیا ئې په نکاح واخسته۔ ځه زمانه پس ئې دریم طلاق ورکه۔ نو لس وس ئې بے حلالے نشی اخستے۔

غرض دا دے چه پس د دریؤ طلاقو نه ئې که اخستل غواړی نو مینه تحلیل ضروری دے۔ او د تحلیل بیان به په آخر د رجعت کښې راشی۔

**مسئله**:- زید خپله ښځه په یو طلاق طلاقه کړه۔ چه عدت ئې تیر شه۔ هغې بل میړه وکه۔ ځه موده پس بیا د زید په نکاح کښې راغله۔ نو وس به دانه وایو۔ چه د زید اختیار وس صرف د دوؤ طلاقو دے۔ ځکه چه یو خو ئې ورله مخو اورکړے و۔ نه بلکه زید د دریؤ طلاقو مالک دے۔ او دارنګ حکم دے۔ د دوؤ او د دریؤ۔

**مسئله**:- ښځے له د خاوند نه سوا بل څوک طلاق نه شی ورکولے۔ البته که هغه بل ته او وے۔ چه ځما ښځه ځما د طرف طلاقه که۔ یا ئې ښځے له اختیار ورکه۔ نو کیدے شی۔

---

ل شرح التنویر ورد المحتار ۱۲ ؎ هدایه ۱۲ ؎ طحطاوی ۱۲ ؎ عه په مسلم الثبوت کښې ئې یو صورت د ضرورت مستثنیٰ کړیدے۔ لیکن عام فقهاؤ دا مسئله دغه شان په عموم ذکر کړے استثناء ئې نه کوی۔ باقی دا مقام د تفصیل نه دے ۱۲ محمد ابراهیم عفی عنه۔

**مسئله**[1] :- که زیی چا په دهلو تهکولو سره مجبور که چه ښځه دے طلاقه که - کنی نو اوبه دِ وژنم - یا لاس خپه به درنه پریکیم - نو زیی په ژبه اوویل چه ځما ښځه طلاقه ده - نو هم طلاق واقع شه - او دَ طلاق نه علاوه نور څیزونه هم داسے شته - چه هغه په جبر سره هم صحیح کیږی - لکه ایلاء - ظهار - رجعت - نکاح - په ایلاء کښې رجوع کول - نذر - قسم - دَ قصاص عفو - د قصاص نه په څه مال سره صلح وغیره وغیره -

**مسئله**[2] :- که زیی دَ خپلے ناوے سره لا نه جماع کړے وه - اونه خلوت - او په یو طلاق ئے طلاقه کړه نو دا طلاق بائن واقع شه - برابره خبره ده - چه صریح لفظ ئے ویلے وی او که کنایه - د داسے ښځے طلاق، طلاق بائن وی - او عدت وله نشته - بس، سره دَ طلاقیدو بل میړه کولے شی - ځکه چه په دے طلاق سره دَ زیی دَ نکاح نه بالکل اووته - دغه وجه ده چه زیی وله پس دَ یو طلاق نه وس دویم او دریم طلاق نه شی ورکولے - او که زیی وله دوه طلاقه یا درے طلاقه په هیر ورکړی وی - یعنے هغه ته ئے ویلی وی چه ته طلاقه ئے په دوو طلاقو سره - یا ئے ویلی وی چه په درے طلاقو - نو چه څومره ئے ویلی - هغه واقع شوی دی - که دوه ئے ویلی وی نو دوه - او که درے نو درے - او که په جدا جدا لفظ ئے ویلی وی - چه ته طلاقه ئے - طلاقه ئے - طلاقه ئے - نو صرف په یو طلاق سره طلاقه شوه - ځکه چه په اول ځل ویلو سره ئے دَ نکاح نه اووته - اجنبی شوه نو باقی دوه ځله چه ئے ویلی - هغه لغو شو -

**مسئله**[3] :- طلاق مباح دے - لیکن ابغض المباحات ورنه ویلے شی - یعنے په ټولو جائزو څیزونو کښې ناکاره او مبغوض دے - که دَ ښځے او دَ خاوند تعلقات خراب شو - جوړ ئے نه کیده - د داسے موقع دَ پاره طلاق دے - او بے ضرورته طلاق ورکول ډیره بده خبره ده - پس که ضرورت وُ - او طلاق ورکول ئے - نو دَ طلاق ورکولو درے طریقے دی - اوله طریقه ډیره ښه ده - او دویمه ښه ده - او دریمه ناکاره -

**اوله** طریقه داده - چه کوم وقت ښځه دَ حیض او دَ نفاسه پاکه وی - په داسے وخت کښې ئے طلاقه کی په یو رجعی طلاق سره - خو هله چه په دغه طهر کښې ئے ورسره صحبت نه وی کړے - (د دوؤ حیضونو په مینځ کښې چه ئے دَ پاکوالی څومره موده ده - هغے ته طهر ویلے شی) او دَ عدت تیرولو پورے وله بل طلاق ورنکی - دَ عدت تیریدلو نه پس به ئے نکاح هسے مات شی - نو دویم دریم طلاق نه څه

---

[1] درمختار ۱۲ [2] شرح التنویر ورد المحتار ۱۲ [3] هدایه ودر ۱۲

ضرورت دے۔

**دویمه:**۔ طریقه داده چه درے طهره کښې وله درے طلاق ورکی۔ یعنے په یو یو طهرکښې یو یو۔ او په دغه طهرونو کښې ورسره صحبت ونکی۔

**دریمه** طریقه داده چه دَدے دواړو طریقونه غیروی۔ مثلاً په یو طهرکښې ئے وله درے طلاق ورکړه په نصیږ یاجدا جدا۔ یائے په حیض کښې طلاق ورکړه۔ نو په دے قسم کښې طلاق خو واقع شه۔ لیکن سړے ګنهګار شه۔

**مسئله**:۔ که ښځه اجنبی وه۔ یعنے دده منکوحه نه وه۔ او هغې ته ئے اوویل۔ چه تاکه فلانے کاروکه۔ نو ته طلاق ئے۔ دَ دے وینا اعتبار نشته۔ نو که بیائے په نکاح واخستله او هغې هغه کاروکه۔ طلاق نه واقع کیږی۔ کومه ښځه چه دَ سړی منکوحه نه وی وس وله طلاق نه شی ورکولے۔ نه سمدستی اونه په څه شرط۔ هاں که شرط ئے دَ نکاح ونګاؤ۔ مثلاً وئے وے۔ چه ماکه ته په نکاح واخستے نو طلاق ئے۔ داوینا معتبره ده۔ یعنے که په نکاح ئے واخستله۔ طلاق ته به شی۔ او که خاوند خپلے منکوحے ته ووے۔ چه تاکه فلانے کاروکه طلاق ئے۔ نو حکم ئے دادے چه هغې که دغه کاروکه۔ طلاق به شی۔

(په څه شرط پورے دَ طلاق معلّق کولو بیان)

دارنګ که مثلاً وئے وے۔ چه تاکه نن فلانے کارونه که۔ نو طلاقه ئے۔ او هغې په دغه ورځ ونکه۔ نو طلاق ته به شی۔ غرض دادے چه خاوند کوم شرط لګولے وی۔ په هغې شرط سره به طلاق واقع کیږی۔ که صریح لفظ دَ طلاق ئے ویلے وُ۔ نو رجعی به واقع شی۔ او که کنایه ئے ویلے وُ په نیت دَ طلاق۔ نو بائن به واقع شی۔

**مسئله**:۔ خپلے ښځے ته ئے ویلی وُو۔ چه ته که دے کورته لاړے نو طلاقه ئے۔ او هغه لاړه نو طلاقه شوه۔ څو دده ورته رجوع وکړه۔ یائے ورسره بیا نکاح وکه۔ نو که وس هغه بیا دغه کورته داخله شوه۔ په دے سره نه طلاق کیږی۔ لیکن که خاوند ورته دَعام ویلی وُو۔ هرکله چه ته دے کورته لاړے نو هر واره طلاقه ئے مثلاً۔ نو په دے صورت کښې په عدت کښې دننه یا پس د دویم نکاح نه دغه کورته دوباره لاړه په دریږی به طلاقه شی۔ بیاکه په عدت کښې یا پس دَ دریم نکاح نه دغه کورته لاړه۔ په دریږی به طلاقه نه شی۔ وس ورسره دے بے دَ حلالے نه نکاح نه شی کولے۔ نوکه پس دَ حلالے نه دَده په نکاح کښې راغله۔ او بیا دغه کورته داخله شوه وس بے نه طلاق کیږی

---

ے شرح البدایه ودرر ۱۲ ےه که سدخیل بهاوه ۱۲ صفحه ےه درمختار ورد المحتار و بحر ۱۲

مسئله[1]:- ښځې ته یې ویلي وو- چه تاله فلانی کار وکه- نو طلاقه یې- پس هغې عربي دغه کار نه وُ کړے- ده وس په یو طلاق طلاقه کړه- نو دَ دے طلاق په عدت کښې دننه که هغې هغه کار وکه- بل طلاق به واقع شي- او که په عدت کښې یې و نکه- او خاوند بیا واخسته- او پس دَ دے نکاح نه هغې هغه کار وکه- نو هم به واقع شي- هاں که دَ دے نکاح نه مینه دعدت نه پس یې هغه کار کړے وي- نو نه واقع کیږي-

مسئله[2]:- ښځه چرته تله- خاوند ورته اووے لاړه نه شے- خو هغه نه منع کیده- نو ده اووے چه که ته دَ دے کوره اووتے طلاقه یې- نو حکم یې دا دے- چه وس که اووته طلاقه به شي- او که وس پاتے شوه- څه ساعت پس اووته- نو نه طلاقیږي- ځکه چه په عرف کښې د دا سے جملې مطلب داګڼړے شي- چه وس مه ځه- دا نه چه چرے مه اوځه-

مسئله[3]:- که چا خپلې ښځې ته اووے چه تاله یو ورز روژه و نیوه نو طلاقه یې پس که روژه یې و نیوه نو دغه ورزے دَ روژے په پوره کیدو سره به طلاقه شي- او که پوره یې نکړه- بلکه ماته یې کړه- نو نه طلاقیږي- او که خاوند ورته دا سے ویلي وُو چه تاله روژه و نیوه نو طلاقه یې- نو که ویې نیوه- بس طلاقه شوه- اګرکه بیا یې ماته کي-

مسئله[4]:- یو سړي یو اجنبۍ ښځې ته اووے چه په کومه ورځ ستا سره نکاح وکه- نو طلاقه یې- نو که دَ شپے یې ورسره نکاح وکه هم طلاقه شوه- ځکه چه په عرف کښې دَ دے مطلب دا دے چه کوم وقت م تا سره نکاح وکه- نو طلاقه یې-

مسئله[5]:- که دَ نکاح نه مینه یې ښځې ته اووے چه ما که ته په نکاح واخستې- نو ته طلاقه یې- نو که نکاح یې ورسره وکه- سره دَ نکاح نه به یې طلاق بائن واقع شي- پس که بیا یې ورسره نکاح وکه- په دے دویم نکاح سره به یې طلاق نه واقع کیږي- هاں که مینه یې ورته ویلي وُو- مثلاً هر کله چه تا سره نکاح وکم- هر وار طلاقه یې- نو وس چه ورسره په دویم یا په دریم ځل نکاح کوي- سره دَ نکاح به یې طلاق واقع کیږي-

مسئله[6]:- که چا اووے- هره هغه ښځه چه زه یې په نکاح واخلم- په ما طلاقه ده- نو که ښځه یې واخسته- سره دَ نکاح نه یې طلاقه شوه- او که بیا یې دَ دے سره

[1] درمختار وشامي ۱۲ [2] شرح التنویر ۱۲ [3] الهدایه ۱۲ [4] الهدایه ۱۲ [5] هدایه و درمختار ۱۲ [6] مجمع الانهر ۱۲

نِکاح وکه - نو دا پے په دوېیم نکاح نه طلاق نیږي - او که مثلاً زید ویلی وي - چه ما هر کله که دَ ښځے سره نِکاح وکه - هغه په ما طلاق ده - نو په دے صورت کښِ یوه ښځه په دوېم او درېم نِکاح سره هم طلاق نیږي - خو چه نکاح کوي - طلاق نیږي به پے - نو که زید نوروي - ښځه ورله دا ده - چه نکاح هم وکوي نه - او که غواړي نو نکاح ورله ضروره دے - خو کوي به سے په چیلے سره - یعنے نِکاح به ورله وکي فضولي سړے دَ یعنے داسے سړے چه هغه له زید نه وي وکیل کړے ) بیا به زید دَ دغه نِکاح اجازت وکي - خو په ژبه نه - بلکه په فعل - یعنے دغه ښځے له به مهر ورلیږي - لیس دا اجازت شه - او نکاح وشه -

طلاق دَ مریض | **مسئله** :- که سړي دَ خپلے ښځے طلاق دَ یو وقت په راتلو پورے معلّق که - مثلاً وے وے - چه دا نوے میاشت شروع شي - نو نه طلاق ته ے به طلاق بائن سره - یا ئے دَ یو بل چا په فعل پورے وتاړه - مثلاً ویوے - چه زید که دے کور ته داخل شه - نو نه طلاق نه ے به طلاق بائن سره - نو که دا تعلیق ے په حالت دَ مرضِ موت کښِ کړے وو - او شرطِ هم موجود شه په حالت دَ مرضِ موت کښِ نو که خاوند ے په عدت کښِ مړ شه دے له میراث شته - او که تعلیق ے په صحت کښِ کړے وو - خو شرط په مرض موت کښِ موجود شه نو میراث ورله نشته -

او که سړي دَ خپلے ښځے طلاق دَ هغے په یو کار پورے معلق که - نو که دا تعلیق او دَ شرط موجود والے دواړه په حالت دَ مرضِ موت کښِ وو - او دغه شرط دَ دے قسمه وو، چه ښځه ئے لا چاره نه وه - مثلاً خاوند ورته ویلی وو - چه تاکه دَ زید سره خبرے وکړے - نه طلاق نه ے به طلاق بائن سره - او دے ورسره خبرے وکړي - بیا ئے خاوند په عدت کښِ مړ شه - نو په میراث کښِ ئے دَ ښځے حق نشته - او که دغه شرط دَ دے قسمه وو - چه دَ ښځے تے نارغیدن وو - مجبوره وه - مثلاً خاوند ویلی وو - چه تاکه ډوډي او خوړه - یا تاکه مونځ وکه - یا تاکه دَ مورو پلار سره خبرے وکړے - نو طلاق ته ے به طلاق بائن سره - او دے دا کار وکه - نو طلاق ته شوه - بیا ئے خاوند په عدت کښِ مړ شه - نو په میراث کښِ ئے دَ ښځے حق شته -

او که تعلیق ئے په صحت کښِ کړے وُ - او شرط په مرضِ موت کښِ موجود شه - نو که دغه شرط نه دَ ښځے مجبوري نه وه - نو میراث ورله نشته - او که دَ دغه شرط نه ئے نارغیدن وُ - نو دَ شیخینو په نزد ورله میراث شته - یعنے که خاوند ئے په عدت

---

ك هدایه و عالمگیري ۱۲

کښې مړ شه ـ نو دَ میراث حقداره ده ـ او که طلاق رجعي وُ ـ نو د رجعي طلاق په عدت کښې چه خاوند مړ شي ـ ښځه په هر صورت کښې حقداره وي ـ

**مسئله** :ـ که په حالت دَ مرض موت کښې خاوند ښځه طلاقه کړه ـ په یو یا په دوه طلاق سره رجعي وي او که بائن ـ یا په درې طلاقه ـ نو حکم دا دے ـ چه دَ دغه طلاق عدت که لا نه وُ پوره شوے ـ او خاوند مړ شه ـ نو ښځه ئے په میراث کښې حقداره ده ـ او که پس دَ عدت دَ ختمیدو نه مړ شه ـ نو نه ـ

دارنګ که خاوند دَ دغه مرض نه جوړ شوے وُ ـ بیا په بل مرض سره مړ شه ـ نو هم حقداره نه ده ـ برابره خبره ده چه عدت ختم شوے وي ـ او که لا نه ـ هاں که طلاق رجعئ او دَ عدت پوره کیدو نه ئے مخکښې خاوند مړ شه ـ نو هغې له میراث شته ـ

**مسئله**[2] :ـ که خاوند په مرض موت کښې دَ ښځې په وینا سره هغه په دریو طلاقو طلاقه کړه ـ بیا په عدت کښې مړ شه ـ یا ورستو ـ نو دَ ښځې حصه ئے په میراث کښې نشته ـ او که په رجعي طلاق ئے طلاقه کړے وه ـ دَ ښځې په وینا سره یا بے وینا او خاوند ئے په عدت کښې مړ شه ـ نو میراث به اخلي ـ

**دَ رجعت بیان** | که[3] ښځه ئے په رجعي طلاق سره طلاقه کړے وه ـ په یو یا په دوه ـ نو حکم ئے دا دے ـ چه په عدت کښې دننه ورته رجوع کولے شي ـ نکاح تړلو ته ضرورت نشته ـ برابره خبره ده چه دَ ښځې خوښه وي ـ او که نه ـ رجوع ورته هر حال صحیح ده ـ او دَ رجوع کولو دیرے طریقے دي ـ یوه دا هم ده چه په ژبه سره صفا او وائي ـ ما تا ته رجوع وکړه ـ یعنې تا ته بیا راوګرځیدم ـ یا او وائي چه ما خپلې ښځې ته بیا رجوع وکړه ـ او غوره دا ده چه په رجعت باندے دوه تنه شاهدان هم ونیسي ـ دَ پاره دَدے چه دَ ښځې او دَ خاوند که چرته بیا اختلاف راشي چه شاهدي وکړے شي ـ او که خاوند ورته په عدت کښې رجوع ونکړه ـ نو پس دَ عدت نه نشي کولے ـ البته که دَ ښځې رضا وه نو نکاح ورسره کولے شي ـ

**مسئله**[4] :ـ دَ طلاق رجعي په عدت کښې که خاوند وګیدو ـ دَ هغې سره ئے جماع وکړه یا ئے ښکل کړه ـ یا ئے ولاس ورووړه په شهوت سره ـ یا ئے دَ هغې اندام مخصوص ته په شهوت سره وکتل ـ نو دا هم رجعت دے ـ یعنې رجوع وشوه

**مسئله**[5] :ـ که خاوند دَ ښځې سره خلوت وکه ـ بیا ئے او ویل چه ما ورسره

---

[1] عالمګیري ۱۲ [2] شرح التنویر ورد المختار ۱۲ [3] هدایه ۱۲ [4] هدایه ۱۲

صحبت هم ورکړې نه دے - او وے ویل چه په ما طلاقه ده - نو دا طلاق بائن واقع شه - رجعت نه شی کولے - البته که د ښځې رضا وه - نو نکاح ورسره کولے شی -

**مسئله[1]** :- د عدت په بیان کښ به راشی - چه د کومے ښځے حیض کیږی - د هغې د طلاق عدت درے حیضه دے - نو که د دریم حیض وینه پوره لس شپے ورځ وشوه - نو د دغه حیض په ختمیدو ئې عدت پوره شه - وس درته خاوند رجعت نه شی کولے - اګر که هغې لا اوبه په ځان نه وی اچولے - او که حیض ئې د لسو ورځو نه کم ؤ - مثلاً په پنځه ورځې وینه بنده شوه - نو د رجعت زمانه لا نه ده ختمه - د کومے پورے چه دا اوبه لا مبی - یا پے د یو فرض مونځ کامل وقت دانه وړی -

**مسئله[2]** :- د دریو طلاقو نه پس که دا خاوند دغه ښځه آخستل غواړی - نو بے د تحلیل نه ئې نه شی آخستے - طریقه ئې دا ده چه دغه ښځه پس د عدت ختمید و نه بل سړی په نکاح واخلی - بیا ورسره هغه جماع وکی - نو که بیا دغه سړے مړ شه - یا ئې دا طلاقه کړه او عدت ئې تیر شه - نو مینے خاوند ئې په نکاح آخستے شی - کنی نو نه - او که دے دویم سړی په دے شرط نکاح وکه چه صحبت ورسره وکم - بیا به ئې طلاقه کم - نو دا مکروه تحریمی دی - ګناه خبره ده - خو نکاح وشه - نو که جماع ئې ورسره وکړه - بیا ئې طلاقه کړه - نو پس د عدت نه ئې مینے خاوند په نکاح اخستے شی - او که نه ئې طلاقوله نو ښځه ئې ده - جبر پے نشته - او که مینه ئې ورته ویلی وو - چه ما که نه په نکاح واخستے او صحبت م درسره وکه - نو طلاقه ئې په طلاق بائن سره - نو سره د صحبت کولو طلاقه شوه - بیا ئې پس د عدت تیریدو نه مینے خاوند په نکاح آخستے شی -

| د ایلا بیان | که چا خپلے ښځے ته اووے چه قسم م دے په خدائے وی[3] - تا ته به چرے |
|---|---|

نژدے نه شم - صحبت به درسره ونکم - یا ئې په قسم سره اووے چه تا ته به د څلورو میاشتو پورے نژدے نه شم - یا ئې د دے په مثل نور الفاظ اووے سره د قسمه - نو دے ته ایلا وئیلے شی - حکم ئې دا دے چه ده که د دغه ښځے سره د دے نه پس په څلورو میاشتو کښ دننه صحبت ونکه - نو په یو طلاق بائن سره به بے طلاقه شی - بیا به ئې دے بے د نکاح نه نه شی آخستے -

او که په دغه څلورو میاشتو کښ ئې دننه ورسره صحبت وکه - نو طلاق ئې بے نه - او دے به د قسم کفاره ورکی -

[1] هدایه ۱۲ [2] درمختار و ردالمحتار ۱۲ [3] مسائل هذا الباب کلها ماخوذة من النهایة ۱۲ منه [illegible] چه جره دی ۱۲ منه

**مسئله** :- که قسم ئې دَ څلورو میاشتو دَ پاره کړې وُ- بیائې قسم مات نه که پس دَ څلورو میاشتو نه بغیرهٔ طلاقه شوه- ده ورسره بیا نکاح وکه- نو وس که دَ دے نکاح نه پس څلور میاشتے دا سے اووښتے- چه ده ورسره په هغے کښې صحبت ونکه- نو خیر دے- یعنی بغیرهٔ بے نه طلاق کیږی- هغه تنگیږے ایلاء ختم شویدے- او که قسم ئې دَ همیشه دَ پاره کړے وو- مثلاً دد ویلی دُو چه قسم دے زه به تا سره چرے صحبت ونه کم- نو قسم ئې مات نه که- او پس دَ څلورو میاشتو طلاقه شوه- خو ده بیا په نکاح واخسته- او دَ دے دویم نکاح نه پس بیا څلور میاشتے تیرے شوے- او ده ورسره په دغے کښې صحبت ونکه- په دویم ځل بیا طلاقه شوه- خو ده ورسره بیا نکاح وکه- دَ دے دریم نکاح نه پس بیا څلور میاشتے دغه شان خالی تیرے شوے- په دریم ځل بیا طلاقه شوه- نو وس ورسره بے دَ تحلیل نه دده نکاح نه کیږی-

هاں که تحلیل وشه- او بیا ورسره ده نکاح وکه- او دَ نکاح نه پس ورته بیا هم څلور میاشتے تیرے نه شه- نو خیر دے- یعنی په هغه ایلاء سره وس نه طلاق کیږی- البته که صحبت ئې ورسره وکه- نو چونکه قسم مات شه- کفاره به ورکوی-

**مسئله** :- که دَ څلورو میاشتو دَ کمے مودے دَ پاره چا قسم او خوړ- نو اگر که دَ څلورو میاشتو نه یوه ورځ کمه وی- دا ایلاء نه ده- نو که په دغه موده کښې ئې صحبت وکه- کفاره دَ قسم به ورکوی- او که صحبت ئې ورسره ونکه- کفاره بے هم نشته-

**مسئله** :- که قسم ئې ونه خوړ- بلکه وے وے چه که ستا سره صحبت وکه نو نه طلاقه ئې- نو دا هم ایلاء ده- نو که په څلور میاشتے کښې ئې ورسره صحبت وکه کفاره بے نشته- خو طلاق رجعی به واقع شی- او که صحبت ئې ورسره ونکه- نو پس دَ څلورو میاشتو نه بے طلاق بائن واقع شی- او که چا څیلے ښځے ته دا سے اووے چه که تا سره صحبت وکه- نو یوه ورځ دوژه رابا ندے لازم ده- نیسم به- یائې مثلاً اووے- چه یوه روپئې را باندے لازم ده- خیرات به ورکوم- یائې دَ دے په شان نورڅه اووے- نو دا هم ایلاء ده- که په څلورو میاشتو کښې ئې ورسره صحبت وکه- نو کوم خبره چه ئې کړے وه- هغه به پوره کوی- او کفاره بے نشته- او که صحبت ئې ونکه- نو پس دَ څلورو میاشتو نه په طلاقِ بائن سره طلاقه شی-

**مسئله** :- که سړي ایلاء وکړه - او دے داسے مریض وُ - چه قوت دَ جماع کولو نه وُ - یا ښځه داسے مریضه وه - یا نابالغه وه - قابله نه وه دَ جماع - یا دَ ایلاء کونکی سړي او دَ هغه دَ ښځے په منځکښې دومره مسافت وُ - چه په څلورو میاشتو کښې ورته نه شه رسیدے - او وه غوښتل چه زه دَ ایلاء نه رجوع کوم - نو رجوع ئے داده - چه په دغه څلورو میاشتو کښې دننه دننه په ژبه ووائي چه ما تاته رجوع وکړه - یا ووائي چه ما هغے ته رجوع وکړه - نو لیس ایلاء ئے ماته شوه - کفاره دَ قسم به ورکوی - او که په دغو څلورو میاشتو کښې دننه دننه ئے بیا دَ هغے په جماع قدرت پیدا موند نو په ژبه ئے چه کومه رجوع کړے وه - هغه باطله شوه - اوس به په صحبت سره رجوع کوی -

**مسئله** :- که څوک وو په بصره کښې ښځه ئے وه په کوفه کښې او ده قسم وخوړ چه زه به کوفے ته چرے داخل نه شم - نو دا ایلاء نه ده -

**مسئله** :- که اجنبی ښځے ته ئے په قسم سره ووے چه زه به ستا سره چرے صحبت ونه کم - نو دا هم ایلاء نه ده - نو که بیا ئے هغه ښځه په نکاح واخسته او په څلور میاشتے کښې ئے ورسره صحبت ونکه - په دے سره نه طلاق کیږی - او که صحبت ئے وکه په دغه موده کښې یا پس - نو کفاره دَ قسم به ورکوی -

**البته**[۱] که داسے ئے ویلی وُو - چه ما که ته په نکاح واخستے نو په خدائ م دے قسم وی چه تاته به چرے نزدے نه شم - یا ئے دَ څلورو میاشتو ویلی وو - نو دا ایلاء ده -

**دَ خلع بیان**

که دَ ښځے او دَ خاوند سره په هیڅ[۲] صورت نه راتله - جوړه ئے نه کیده - او خاوند طلاق قوله هم نه - نو ښځے له دا هم جائزدی - چه دَ څه مال په عوض دَ خاوند سره دَ خلع خبره سازه کی - او کوم شے چه مهر کړے شوے - هغه بدل دَ خلع هم کولے شی - نو که ابتداء دَ ښځے دَ طرفه وه - او وے ویل چه څما کوم مهر چه ستا په ذمه دے دَ هغے په بدل کښې ما خلعه که - یعنے دَ خپل نکاح نه م او باسه - یا ئے مثلاً او ویل چه هاں دا سل روپئے واخله دَ دے په بدل کښې ما خلعه که - نو که خاوند ورته په جواب کښې اوویل چه ما خلعه کړے یعنے دَ نکاح نه م او وایستے - نو یو طلاق بائن واقع شه - او که خاوند دَ خپلے ناستے په ځائے جواب ورنکه - بلکه پاسیدلو - یا هغه څو بچپل ځائے ناست وُ - لیکن ښځه پاسیده او خاوند وله دَ دے نه پس جواب ورکه ، چه ښه ده ما

[۱] درمختار ۱۲ [۲] درمختار ورد المحتار ۱۲

خلعه کړے۔ نو په دے سره هیڅ نه کیږی۔ په داسے صورت کښې سوال جواب یو ځائے پکار دی۔ هاں که ابتداء د خاوند د طرفه وه۔ یعنے هغه ښځے ته اووے چه ما ته ستا د مهر په عوض کښې خلعه کړے۔ او ښځے د اقبوله کړه۔ نو خلعه وشوه۔ او که ښځے د غه ځائے جواب ورنکه۔ بلکه د دغه ځائے نه پاسیده۔ بیا ئے اووے چه ما قبوله کړه۔ یا هیڅ وقبوله ئے نکړه۔ نو خلعه نه ده شوے۔ او که ښځه خو په خپل ځائے ناسته وه۔ لیکن خاوند ئے د دے وینا نه پس د خپل ځایه پاسیده۔ او ښځے د خپلے ناستے په ځائے د هغه د پاسیدو نه پس قبوله کړه۔ نو خلعه وشوه۔ او نابالغ هلک او لیونے خلعه نه شی کولے۔

**مسئله**:۔ که خاوند صرف دا اووے چه ما خلعه کړے۔ او ښځے قبوله کړه۔ او د روپو پیسو وغیره عوض هیڅ ذکر نکړے شه۔ نو هم چه د دغه نکاح متعلق څه موجوده حق د خاوند په ښځے وی یا د ښځے په خاوند۔ هغه معاف شه۔ خلعه وشوه نو که د خاوند په ذمه څه مهر پاتے وو۔ هغه معاف شه۔ او که مهر ښځے آخستے و۔ نو په ښځه ئے ورکرځول واجب نه دی۔ البته د عدت د ختمیدو پورے به ورله خاوند ډوډئ جامه۔ د استوګړے ځائے ورکوی۔ لیکن که ښځے ویلی وو چه دا به درنه هم نه غواړم۔ بیا به خاوند واجب نه دی۔ نو په کوم کور کښې چه دوئ اوسیده که هغه د دے ذاتی و۔ نو عدت به پکښې خو تیر کی۔ او که د خاوند و۔ نو عدت خو به په دغه کور کښې تیره وی۔ لیکن د عدت د ورزو د وسیدو کرایه به هم ورکوی۔ د دغه کور خاوند له۔

**مسئله**:۔ که ګناه خاوند نه وه۔ نو په خلعه کښې دے مهر یا روپئ وغیره عوض نا خلی۔ او که ګناه ښځے نه وه۔ نو څو مره چه ئے وله مهر ورکړے د هغے نه دے زیات نا خلی۔ زیات آخستل وله مکروه دی۔ او که ئے واخسته نو هم خلعه وشوه په دواړو صورتونو کښې۔

**مسئله**:۔ که ښځه په خلعه رضا نه وه۔ او خاوند په وهلو ټکولو سره په خلعه مجبوره کړه۔ پس هغے وکړه۔ نو طلاق بائن خو واقع شو۔ لیکن د ښځے په ذمه مال نه دے واجب۔ او کوم مهر چه ئے خاوند نه دے هغه نه دے معاف۔

**مسئله**:۔ که خاوند اووے چه ما ته په عوض د دوه سوه روپئ کښې خلعه

---

ے درمختار ورد المحتار ۱۲ ے هدایه ۱۲ ے شرح التنویر ۱۲ ے شرح للتنویر ورد المحتار ۱۲

کړې او هغې قبوله کړه. نو یو طلاق بائن واقع شه. او دَ ښځې په ذمه دوه سوه روپۍ واجب شوې. که مهر ئې اخستے وی. هم به دوه سوه روپۍ ورکوی. او پاتے مهر هم دَ خاوند ذمے نه دَ خلع په وجه معاف شه.

**مسئله** [۱]:- که دَ خلع یا دَ خلع په معنی بل لفظ نهٔ وئیلے شوے. بلکه ښځې اووے مثلاً چه څلور سل روپۍ واخله. دَ دے په عوض کښې م طلاق نه کړه. نو هغه طلاق نه کړه. نو دا خلعه نه ده. بلکه دے ته طلاق علیٰ مالٍ وئیلے شی. حکم ئې دا دے چه طلاق بائن واقع شه. او په ښځه سل روپۍ واجب شوے. او نور څه حقوق چه ددې په یو بل باندے دی. هغه نه دی معاف. نو که خاوند لا مهر نه وی ورکړے نو په ذمه ئې شته معاف نه دے.

دَ ظهار بیان | که چا خپلے ښځې [۲] ته اووے چه ته په ما باندے څما دَ مور دَ شا په شان ئې نو دا ظهار دے. او که په دے وینا سره ئې نیت دَ طلاق کړے وی. نو طلاق به نه واقع کیږی. ځکه چه ظهار په زمانهٔ جاهلیت کښې طلاق وُ. خو شریعت ئې طلاق والے منسوخ کړے دے. او که چا خپلے ښځې ته اووے چه ته په ما باندے څما دمور په شان ئې. یا ته په ما باندے څما دَ مور په مثل ئې. یا ئې دا رنګ بل څه لفظ اووے نو که مطلب ئې دا وُ. چه زهٔ ستا عزت داسے کوم لکه دَ مور. یا دا چه ته په عمر کښې څما دَ مور په شان ئې. نو په دے وینا هیڅ نه کیږی. او که دَ دے ویلو په وقت کښې ئې نیت هیڅ نهٔ کړے. همسے ئې دَ خولے نه دا لفظ ایستلے وُ. نو هم څه نه کیږی. او که په دے وینا سره ئې نیت دَ طلاق وُ. نو طلاق بائن به واقع شی. او که نیت ئې دَ طلاق نهٔ کړے. بلکه مطلب ئې دا وُ. چه ئې خو به څما ښځه. لیکن صحبت به ورسره نه کوم. نو دے ته ظهار وئیلے شی. دَ ظهار حکم دا دے. چه دغه ښځه به دَ دے خاوند ښځه وی. لیکن دکومے پورے چه دہ دَ ظهار کفاره نه وی ادا کړی. دے ورسره صحبت نه شی کولے. بلکه په شهوت سره وله لاس ورووهل او بوس کنار کول هم حرام دی. هاں دَ هغې سره خبرے کول او هغې ته کتل وله حرام نه دی. البته اندام مخصوصه ته ئې نظر کول حرام دی. او که کفاره ئې ادا کړه. نو بیا وس ورسره صحبت وغیره باقاعده کولے شی. نوی نکاح تړلو ته ضرورت نشته. او که دَ کفارے اداکولو نه بغیر ئې ورسره صحبت وکه نو دا لوئے

---

[۱] هدایه وشامی ۱۲ [۲] هدایه ورد المحتار ۱۲

گناه دے۔ توبه دے اوباسی۔ او دَ کفارے اداکولو مینه دے بیادا شے وُنه کی۔ او ښځے له پکار دی۔ چه دَ کوے پورے خاوند کفاره نه وی اداکړے۔ ځان نه دے نه پرېږدی۔ اوکه په ظهار کښ څلور میاشتے اووشی یا زیاتے۔ او خاوند ورسره نه صحبت وکه۔ نه ئے کفاره ادا کړه۔ نو په دے سره طلاقه کیږی نه۔ ځکه چه ظهار ایلاء نه ده۔

مسئله: که چا خپلے ښځے ته اووے چه ته په ما باندے ځما دَ خور په شان ئے۔ یا ځما دَ لُور په شان۔ یا دَ بلے داسے ښځے په شان ئے اووے۔ چه هغه په دهٔ باندے دَ همیشه دَ پاره حرامه وه۔ نو دا هم لکه د مور په شان دی۔

مسئله:۔ د هندے سره خپل خاوند ظهار کړے وُ۔ وس یُو سړے خپلے ښځے ته دَ ظهار په نیت وائی۔ چه ته په ما باندے دَ هندے په شان ئے۔ نو دا هم ظهار دے۔ دارنګ که سړی دَ خپلے یوے ښځے سره ظهار کړے وُ۔ بیائے بلے خپلے ښځے ته دَ ظهار په نیت اووے۔ چه ته په ما باندے دَ هغے په شان ئے۔ نو دا هم ظهار دے۔

مسئله:۔ که چا خپلے ښځے ته اووے چه ته په ما باندے دَ مردارے په شان ئے۔ یائے اووے چه ته په ما باندے دَ خنزیر د غوښو په شان ئے۔ نو که په نیت د طلاق ئے ویلی وُ۔ طلاق واقع شه۔ او که په نیت دَ ظهار ئے ویلی وُو۔ یائے نیت هیڅ نه وُ کړے نو هیڅ نه دے۔

مسئله:۔ که چا اووے چه ته ځما دُ پاره ځما دَ مور په شان حرامه ئے۔ نو که په دے وینا سره ئے نیت دَ طلاق کړے وُ یا دَ اِیلاء۔ یا دَ ظهار۔ نو چه څه نیت ئے کړے وی۔ هغه به شی۔ او که نیت ئے هیڅ نه وُ کړے نو ظهار دے۔

مسئله:۔ که دَ شان لفظ اونکړو لفظ چه دَ شان په شان وی۔ هغه ئے وُنه وُ بلکه دائے ووے چه ته ځما مور ئے یائے ووے چه ته ځما خور ئے نو په دے هیڅ نه کیږی۔ نه پے ښځه حرامیږی۔ نه پے کفاره راځی۔ خو داسے ویل گناه دے۔

دارنګ خپلے ښځے ته آواز کول چه یا مورے یا خورے دا هم ډیره بده خبره ده۔ خو څه پے کیږی نه۔

مسئله:۔ دَ ظهار لفظ ئے څو څو ځله اووے۔ مثلاً ښځے ته ئے په نیت دَ ظهار دوه درے ځله اوویل چه ته په ما باندے ځما د مور په شان ئے۔ نو هر څو واره چه ئے ویلی۔ هغه هُمره کفارے به پے راځی۔ لیکن که دَ تکرار نه ئے مقصد صرف دَ

---

له درود ۱۲ ۲ شامی ۱۲ ۳ هندیه ۱۲ ۴ درود ۱۲ ۵ عالمګیری ۱۲

اوسے خبرے تاکید او بخوالے وُ۔ نو ے ظهار نه وُ۔ بیا پے کفاره صرف یوه ده۔ او که دَ سرې کتړے بنځے وُ پے هغو ے نه ئے اووے مثلاً۔ چه تاسو په ما بانده ے حُماۮ مور دَ شا په شان یئے۔ نو دادَ دغه ټولو سره ظهار شه۔ نو څو مره چه هغه دی۔ کفارے به پے هغو مره راځی۔

مسئله :- که ظهار ئے کړے وُ۔ خو دَ همیشه دپاره نه۔ بلکه څه موده ئے وله بخے وه۔ مثلاً دیلی ئے وو۔ چه ته په ما بانده دَ یوکاله پورے حُماۮ مور دَ شا په شان ئے۔ یا دَ څلورو میاشتو پورے۔ یا دَ دوو ورز پورے۔ غرض دا چه څه میعاد ئے ذکر کړے وُ۔ نو که په دغه میعاد کښې د ننه ورسره صحبت کول غواړی۔ مینه به کفاره ادا کوی۔ او که په میعاد کښې ئے ورسره صحبت وُ نکه۔ نو پس دَ میعاد نه وله ښځه هسے حلاله شوه کفاره پے نشته۔

مسئله :- ظهار هم د طلاق په شان دے په دے خبره کښې چه دَ ظهار دَ لفظ سره ئے متصل که انشاء الله اووے۔ ظهار نه دے۔ او په دے کښې چه نابالغ هلک او لیونے ظهار نه شی کولے۔ او په دے خبره کښې چه دَ اجنبی ښځے سره ظهار نه شی کیدے۔ نو که ښځه دده منکوحه نه وه۔ او ده ورته اووے چه ته په ما بانده حُماۮ مور دَ شا په شان ئے۔ نو په دے هیڅ نه کیږی۔ هاں که دائے اووے چه ماکه ستا سره نکاح وکه۔ نو ته په ما بانده حُما دَ مور دَ شا په شان ئے۔ نو دا ظهار دے۔

کفاره دَ ظهار | د رمضان[۳] د روژے کفاره چه مینه بیان شوے ده۔ د ظهار کفاره هم هغه شان ده۔ دَ هغے دَ روژو او دَ اطعام کوم مسائل چه مینه په تفصیل سره ذکر شوی دی۔ هغه ټول دلته جاری کیږی۔ خو دومره فرق دے۔ چه د ظهار کفاره ئے که په روژه سره ادا کوله۔ نو د کومے پورے چه ئے روژے ټولے نه وی نیولے دَ هغے نه مینه دے دَ دغه ښځے سره صحبت نه کوی۔ که وئے که۔ نو وس به بیا دَ سره دوه میاشتے روژے نیسی۔ برابره خبره ده چه صحبت ئے ورسره دَ ورزے کړے وی او که دَ شپے۔ او قصداً وی او که په هیره۔ او که په کفاره کښې ئے مسکینان مړول څه ئے ماړه کړل او څه پاتے وُو۔ بیائے دَ دغه ښځے سره صحبت وکه۔ نو ګناه خوئے وشه۔ لیکن کفاره پے دَ سره شروع کول ضروری نه دی۔

له عالمګیری ۱۲ ۲ در مختار ورد المحتار ۱۲ ۳ در ورد ۱۲

**مسئله** :- که په ذمه ئے دَ ظهار دوه کفارے وے۔ دَ یوے ښځے یا دَ دوؤ۔ او دے ونکیده په کفاره کښ ئے شپیتو مسکینانو له اناج ورکه۔ هر یوله په هیڅ دَ دوؤ فطرو په مقدار په دے خیال چه په دے سره به کفاره دَ دواړو ظهاردونو اداشی۔ نو نه اداکیږی بلکه صرف دَ یو اداشوه۔ بله به بیا ورکوی۔ او که یوه کفاره ئے دَ رمضان وه۔ بله دَ ظهار او په هغې کښ ئے داسے وکړه۔ نو دواړه به اداشوے۔

دلعان بیان | که خاوند په ښځه تهمت دَ زنا ولګاؤ۔ یا دَ هغې بچے پیدا شه۔ لیس ده اووے چه دا دَ زنا دے۔ یا ئے اووے۔ چه دا بچے زما نه دے۔ او ښځے دَ قاضی په مخکښ دعوه وکړه۔ چه ده په ما دَ زنا تهمت لګولے دے۔ په ده دے حدِ قذف یعنے اتیا دُرے وُلګی نو حکم دادے چه دی دواړه به لعان کوی۔ خو دَ لعان دیاره دوه شرطه دی :-

یو دا چه ښځه او خاوند دواړه دَ شاهدئ اداکولو اهل وی۔ په مسلمان بالغ دے۔ نو که یو پکښ اهل نه وُ۔ یعنے نابالغ وُ۔ یا لیونے وُ۔ یا چارا۔ نو لعان ورله نشته۔

دویم شرط دادے چه ښځه عفیفه وی۔ یعنے پاکه وی دَ زنا نه۔ او دَ زنا دَ تهمت نه۔ یعنے بے دَ نکاح صحیح نه ورسره وطی نه وی کړی شوی۔ او نه ئے بچے وی مجهول النسب نو که دا شرائط موجود وُو۔ دواړه به لعان کوی۔ طریقه ئے داده۔ چه قاضی به دواړه مخامخ ودروی۔ خاوند ته به حکم وکی۔ چه وایه۔ نو هغه به څلور ځله دا اُووائی چه زه شاهدی کوم په خدائے پاک سره چه دَ زنا تهمت چه ما په دے لګولے دے۔ زه په هغې کښ رښتینے یم او په پنځم ځل به او وائی چه کوم تهمت دَ زنا چه ما په دے لګولے دے۔که زه په هغې کښ دروغژن یم نو په ما دے لعنت وی۔ دَ خدائے پاک۔ او کوم وقت چه دے نه وائی۔ نو په هر وار به دغه ښځے ته اشاره هم کوی۔

بیا به ښځه څلور ځله اووائی چه زه شاهدی کوم په خدائے پاک سره چه ده دَ زنا کوم تهمت چه په ما لګولے دے۔ دے په هغې کښ دروغژن دے۔ او په پنځم ځل به اووائی ده چه په ما دَ زنا کوم تهمت لګولے دے۔که چرے دے په هغې کښ رښتینے وی۔ نو په ما دے غضب وی دَ خدائے پاک۔ دَ دے نه پس به قاضی دَ دوئ په مینځکښ جدائی راولی او دا جدائی به دَ یو طلاق بائن په حکم کښ کنړلے شی۔

او که صورت داسے وُ۔ چه ښځے دَ قاضی په مخکښ دعوه وکړه چه ده په ما دَ صریح زنا تهمت

---

له هدایه ودرورد ۱۲ سه شرح التنویر وشامی ۱۲

ګکړے دے۔ په ده دے حد قذف ولګی۔ او خاوند اقرار دد ے تهمت کاوُ۔ یا ئے انکار کاوُ۔ خو ښځے په شاهدان ثابت کړه۔ او دَ سړی شاهدان دَ دغه ښځے په زنا باندے نه وو۔ او قاضی ورته د لعان حکم وکه۔ خو ده اووے چه لعان نه کوم۔ نو حکم دادے چه دے به قید کړے شی۔ ترد ے پورے چه یا ځان نه دروغژن اووائی په دغه تهمت کښ۔ نو حد دَ قذف به پے ولګی۔ یا لعان وکی۔ نو ښځه به ترے جدا کړے شی۔ او که خاوند لعان وکه۔ بیا قاضی ښځے نه اوویل چه وس ته وایه۔ خو ښځے انکار وکه۔ نو دا به قید ه کړے شی۔ ترد ے پورے چه دا لعان وکی۔ یا خاوند ته په دغه تهمت کښ رښتینے اووائی۔ نو که رښتینے ئے ورته اووے۔ لعان لاړ۔

| مسئله که د ښځے خاوند عِنّین وُ۔ یعنے نامرد وُ۔ اوَ | دنامرد خاوند څه حکم دے |
|---|---|

نکاح نه پس ئے تر ادسه پورے یو وار هم دَ دے ښځے سره صحبت نه وُ کړے شوے۔ او دا حُره وه۔ او بالغه وه۔ او دَ نکاح نه مینه دَ ده دَ نامردئ نه خبره نه وه۔ او پس دَ معلومید و نه په راضی شوے هم نه وه۔ او دَ وړو بولو په ځائے کښ څه داسے نُقص نه وُ چه هغه مانع وی دَ جماع نه۔ لکه رتق[1] او قرن۔ نو دے ښځے له حق شته چه دَ قاضی په مخکښ دعوه وکی۔ نو که دعوه ئے دَ نامردئ وکړه۔ او وے ویل چه ده تر ننه پورے ما سره جماع نه ده کړے۔ او خاوند اوویل چه دا دروغ وائی ما ورسره کړے ده۔ نو وس دوه حاله دی۔ که دا ئے ثیّبه آخستے وه۔ نو خبره دَ خاوند معتبره ده سره دَ قسم۔ نو که قسم ئے په خدائے پاک سره اُخوړ۔ چه ما ورسره پس دَ نکاح نه جماع کړے ده۔ نو دَ ښځے حق اوغورزیده۔ او که دَ قسم خوړلونه ئے انکار وکه۔ نو قاضی به وله یو کال مهلت ورکړی۔

اوکه دا ئے باکره آخستے وه۔ نو یوه ثقه ښځه به ئے اوګوری۔ او غوره دا ده چه دوه ښځے ئے اوګوری۔ چه وس ثیّبه ده اوکه باکره۔ نو که وے وے۔ چه باکره ده۔ خاوند له به یو کال مهلت ورکړے شی۔ اوکه وے وے چه ثیّبه ده۔ خاوند به قسم اوخوری او دَ ښځے حق به اوغورزیږی۔ اوکه دَ قسم نه ئے انکار داوړ۔ یو کال مهلت به ورکړے شی۔ او که خاوند خصی وُ۔ نو دَ هغه حکم هم په شان دَ عنین دے۔ هغه له به هم دا رنګ مهلت ورکیږی۔ او دکال نه مراد قمری کال دے۔ په دے کښ دَ رمضان

له درمختار وشامی ۱۲ [1] رتق دادے چه دَ ښځے دَ وړو بولو ځائے قدرتی بند وی۔ جماع ورسره نه شی کیدے۔ او قرن دادے چه دَ هغے په لارے کښ څه غوښه وی۔ یا هډوکے۔ شامی ۱۲ منه

میاشت اود ښځې دحیض ورځې اود خاوند دغیبت موده هم حساب ده - یعنې دکال نه زیاتي به وله ورځې په ځائې نورې ورځې نه ورکیږي - البته د ښځې د غایب والی موده اود ښځې د مرض او د خاوند د نور مرض کوم چه مانع وي د جماع نه دهغه موده یګښې نه ده حساب - اود اکال به د مقدمې د وقت نه حسابیږي - لیکن که خاوند وروکې وُ - یا خو ناجوړه وُ - نو بیس د بلوغ نه اولیس د صحت نه به شروع کیږي - نو که مهلت ورکړې شه - بیا د مهلت دغه کال تیر شه - او ده اووئې چه ما د رسره جماع کړیدې او هغې اووې چه نه ئې ده کړې - نو بیا دوه حالې دي - که دائې باکره واده کړې ده - وس به ئې بیا ښځې اوګوري - که هغوی اوویل چه وس باکره ده - نو ښځې له به اختیار ورکړې شي - اوکه وئې ویل چه ثیبه ده - نو خاوند به قسم اوخوري چه ما ور سره جماع کړې ده - نو د ښځې حق به او غورزیږي - اوکه خاوند د قسم نه انکاروکه - نو ښځې له به اختیار ورکړې شي - اوکه دائې ثیبه واده کړې وه - نو خبره د خاوند معتبره ده - سره د قسمه - اوکوم ځائې چه مونږ دا اووې چه ښځې له به اختیار ورکړې شي - د هغې مطلب دادې چه قاضي به ښځې ته اووائي چه وس ستا خوښه ده - که جدائي غواړې بیخوالی ئې کړې - نو که هغې تفریق غوښتنه - قاضي به ئې خاوند ته اووائي چه طلاق ورئې که - نوکه هغه نه طلاق قوله - قاضي به د دوی په منځکښې تفریق راولي - او دا تفریق به په حکم د طلاق بائن کښې ګڼلې شي - خو دا خبره ضروري ده - چه کوم وقت قاضي ښځې له اختیار ورکه - بس په دغه مجلس کښې دا اووائي چه ما دا خاوند نه دې خوښ - د نکاح نه ئې اوځم - اوکه دغلته ئې څه ونه وئې - د مجلس نه پاسیده نو اختیار ئې اوغورځیږي -

**مسئله:** - که خاوند مجبوب وُ - یعنې کوز سامان ئې لاندې بانده ټول د بیخه ایستلې شوې وُ - نو ده ته مهلت نشته - لکه عنین اوخصي له چه دې - بلکه فی الحال به جدائي راوستې شي - ځکه چه مهلت کښې ئې فائده نشته -

**مسئله:** - که سرې د زرګي د پاسه په لاس وهلو سره نه معلومیده چه دې مجبوب دې اوکه نه - نو قاضي به خپل امین ته اووائي چه ته ئې په جدا ځائې کښې لغړ اوګوره - نو خیردې د ضرورت دپاره دا جائز دي -

**مسئله:** - که ښځې خپل خاوند عنین اوموند یا مجبوب - اود نکاح نه ئې

---

[1] شرح التنویر ۱۲ [2] رد المحتار ۱۲ [3] در مختار و رد المحتار ۱۲

مړده پس دعوه وکړه - نو په دے تاخیر سره یې حق نه غورزیږی - دارنګ که ذ مهلت ورکولونه پس یو کال تیرشه - خو دے څه ونه وے - بیا ورو ستو یې مطالبه وکړه نو په دے تاخیر سره یې هم حق نه غورزیږی - هاں که پس ذ معلومیدو نه یې په ژبه ویلی وی چه دے ځما خوښ دے - نو وس یې اختیار نشته -

مسئله :- په ښځه او خاوند کښ که څه عیب او نقص وُ - نو اګر که نقص غیر معمولی وی - لکه لیونتوب - جزام - برص - رتق - قرن - نو هم ورله ذ شیخینو په نزد ذ نکاح فسخ کولو اختیار نشته - او نور دریواړه امامان صاحبان وائی چه شته او امام محمد صاحب وائی چه په خاوند کښ که یو نقص ذ مینځی دریو وُنه موجود وُ - ښځے له اختیار ذ فسخ شته -

| عدت ذ طلاق | ذ طلاق عدت خاص په هغه ښځه دے چه سړی هغه په صحیح نکاح

سره اَخستے وی - بیا یې ورسره صحبت کړے وی - او پس ذ هغے نه یې طلاق کړے وی - یا صحبت خو یې ورسره نه وُ کړے - لیکن خلوت یې ورسره کړے وُ - خلوت صحیحه وی - او که غیر صحیحه - بهرحال په داسے ښځه باندے عدت شته - او که نه یې ورسره صحبت کړے وُ - نه خلوت او طلاق نه یې کړه - نو عدت ذ طلاق پے نشته -

مسئله :- که ښځه طلاق ته کړے شوه - یا دواړو په مینځ کښ په څه بله ذریعه شرعی فرقت واقع شه - او ښځه حره وه - او حیض یې کیدو - نو عدت یې درے حیضه دے - او که حیض یې نه کیدو نو عدت یې درے میاشتے دے - او که کیږه یې وه - نو عدت یې وضع حمل دے - یعنے بچے پیدا کیدل -

مسئله :- که سړے دهوکه شه - په غلطۍ یې ذ بلے ښځے سره جماع وکړه - په دے خیال چه دا ځما ښځه ده - بیا معلومه شوه چه دا څوبل څوک وه - نو په دے صورت کښ هم په سړی مهر مثل واجب دے - او دا جماع به زِنا نه شی ګڼړلے - او که حمل تے وشه - نو د دغه بچی نسب به ثابت وی - حرامی به نه وی - بلکه د دغه صحبت کونکی بچے به وی - او په ښځه عدت هم واجب دے - بے ذ عِدّت پوره کولونه ورله ذ خپل خاوند سره یو ځائے کیدل یعنے صحبت وغیره هم جائز نه دی - او عدت یې هغه دے کوم چه په مخکینۍ مسئله کښ ذکر شه -

---

له درمختار و ردالمحتار ۱۲ ؎ هدایه وشرح التنویر ۱۲ ؎ هدایه ۱۲
؎ عالمګیری وشامی ۱۲

**مسئله**[1] :- که خدا نخواسته ښځه ئې د حیض په ورځ وکښې طلاق ته کړه- نو دا حیض په عدت کښې نه دے شمار- بلکه نور درے به پوره کوی-

**مسئله**[2] :- که د ځینئې حیض نه کیده- د دے وجه نه ئې عدت په میاشتو شروع کړے وُ- بیائې په عدت کښې دننه یوه میاشت یا دوه میاشتے حیض وشه- نو وس ئې عدت په حیض سره دے- یعنې د طلاق نه رائیسته چه ئې درے حیضه پوره شی- هله به ئې عدت ختمیږی-

اوکه[3] ښځه مشره وه- عدت ئې په حیض سره شروع کړے وُ- لیکن بیا ئې د عمر په تقاضا سره په عدت کښې حیض بند شه- نو اوس ئې عدت په میاشتو سره دے-

**مسئله**[4] :- د طلاق عدت شروع کیږی پس د طلاق قید دے- نو که خاوند طلاق ته کړے وه- او دے ته نه وه معلومه- بیاورته پس د موده د عدت نه معلومه شوه- نو عدت ئې پوره شوے دے- نوی عدت ته ضرورت نشته-

**مسئله**[5] :- که ښځه ئې په طلاق بائن سره طلاق ته کړه- یا په درے طلاقو- او بیا دهوکه شو- په عدت کښې ئې ورسره په شبهے سره جماع وکړه- مثلاً په دے خیال چه دا حُبا هغه بله منکوحه ده- نو په دے ښځه دوه عدتونه راغله- نو په دوارو کښې به تداخل راځی- اوکه اول عدت ئې پوره شه- او دوئیم لا نه وُ پوره شوے- نو دوئیم به پوره کوی- نو مطلب دا شه چه هغه که حامله نه وه- او د دغه جماع نه پس ئې درے حیضه پوره شو- نو دواړه عدتونه ئې پوره شو-

**عدت د وفات** | که د (حرے)[6] ښځې خاوند مړ شے نو د دے عدت څلور میاشتے او لس ورځے دے- برابره خبره ده- چه حیض ئې کیږی اوکه نه- او خاوند ورسره خلوت یا صحبت کړے دی- اوکه نه- عدت ئې څلور میاشتے او لس ورځے دے- هان که حامله وه- نو عدت ئې وضع حمل دے- پس که د خاوند په مرګ پسے ئې سمدستی بچې وشه- چه خاوند ئې لا په تخته پروت وُ- نه وُ دفن کړے شوے هم ئې عدت پوره شه-

**مسئله**[7] :- که خاوند نابالغ بچې وُ- او مړ شه په داسے حال کښې چه د ښځے

[1] هدایه ۱۲ [2] هندیه ۱۲ [3] هدایه ۱۲ [4] هدایه ۱۲ [5] درودو هدایه ۱۲
[6] هدایه ۱۲ [7] هدایه ۱۲

یې کیږه وه. نو دا دې ښځې عدت هم وضع حمل دې. لیکن بچي چه یې پیدا شي هغه به حرامي ګڼلې شي. ځکه چه خاوند یې نابالغ بچې وُ.

**مسئله**[1]:- د وفات عدت پس د وفات نه شروع کیږي. نو که خاوند یې مړ شوې وُ. خو دې ته معلومه نه وه. بیا پس د مودې د عدت نه ورته معلومه شوه. نو عدت یې پوره شوې دې.

**مسئله**[2]:- که ښځه حامله نه وه. او خاوند یې د میاشتې په اول سر مړ شه. نو دا ښځه به د سپوږمۍ په حساب څلور میاشتې او لس ورځې پوره کوي. یعنې میاشت که د یو کم دیرش وي نو هم خیر دې. چه څلور تمرې میاشتې او لس ورځې پوره شي. نو عدت یې پوره شه. او که خاوند یې د میاشتې په اول سر نه وُ مړ. بلکه وروستو مړ شوې وُ. نو دا به عدت د ورځو په حساب سره پوره کوي. او د دیرشو ورځو به یوه میاشت حسابوي. نو ټولې ورځې یې یوسل دیرش دي. او د طلاق د عدت هم دغه حکم دې. چه ښځه که حامله نه وه. او حیض یې نه پاکیده. او خاوند طلاق کړه. نو که د میاشتې په اول سر یې طلاق کړې وي. نو د سپوږمۍ په حساب به درې میاشتې پوره کي

او که د میاشتې د اول سر نه پس یې طلاق کړه. نو د ورځو په حساب به عدت پوره کوي. نو ټولې ورځې یې اتیا لس دي.

**مسئله**[3]:- که خاوند په خپل مرض موت کښې ښځه په طلاق رجعي سره طلاق کړه. بیا د هغې عدت لا نه وُ پوره. او دې مړ شه. نو دا به عدت د وفات تیره وي په دې کښې څوک د امامانو صاحبانو اختلاف نشته. او که په طلاق بائن سره یې طلاق کړې وه. یا په درې طلاقه. نو امام اعظم صاحب او امام محمد صاحب والي چه وس به ګوره. که د طلاق په عدت کښې ورځې زیاتې لګیدې نو عدت به د طلاق پوره کوي. او که د وفات په عدت کښې زیاتې لګیدې. نو د وفات. بس.

**مسئله**[4]:- کومه ښځه چه منکوحه وي په نکاح فاسد سره. د هغې د غه خاوند که مړ شه. نو عدت د وفات نه پوره کوي. بلکه عدت یې درې حیضه دې او که حیض یې نه کیده. نو درې میاشتې. او که حامله وه نو وضع د حمل.

---

[1] هدایه ۱۲ [2] عالمګیري ۱۲ [3] هدایه ۱۲ [4] درمختار وشامي وهدایه ۱۲

**دسوګ بیان** | کوم[1] عاقله بالغه ښځه چه منکوحه وی په نکاح صحیح سره - بیا طلاقه شوی وی - په طلاق بائن یا په درے طلاقه - یا ئې خاوند مړ شوے وی - ددے ټولو حکم دادے چه دکوم پورے ئې عدت نه وی پوره شوے - زیب وزینت کول ورله حرام دی - خوشبو لګول - رانجه پورے کول - په سر کښې تیل اچول - نکریزه لګول - ښیښیے جامے اغوستل - دښایست لباس استعمالول - کالی اچول - وغیره وغیره وله حرام دی دے زینت نه کولو او خپرو وسپیدلو ته سوګ وئیلے شی -

اوکه عذر وُ - مثلاً دسر درد په وجه دتیلو اچولو ضرورت وُ - نو تیل لګولے شی - کوم چه خوشبویه نه وی - همغه دے لګوی - دارنګ ددارو دپاره ئې که رانجه پورے کول هم خیر دے - لیکن که دشپے پورے کول کافی کیداه - دشپے دے پورے کوی - اودَ ورزے دے پاکوی - غرض دادے چه دعذر نه دے زیاتے نه کوی - اود ضرورت په وخت ورله سر منګزول هم جائز دی - لیکن دکومے منګزے غاښونه چه نری وی - په هغې نه - بلکه په غټه - اوکه په دے باندے ئې ضرورت نه دفعه کیداه نو په نری ئې هم کولے شی - خو زینت دپاره نه - او سر مښکل او لمبل وله جائز دی -

مسئله[2] :- دخاوند نه سوا دبل چا په مرګ باندے سوګ جائز نه دے البته که دخپل رشته دار په مرګ باندے زیب وزینت پریدی - نو درے ورځو پورے وله مباح دی - لیکن که خاوند منعه کوله نو نه دی کوی -

مسئله[3] :- په کوم کور کښې چه داوسیده او طلاق نه شوے ده - عدت به په هغې کښې تیره وی - بلکه که دپلار کره دملاقات دپاره تلے وه - او خاوند طلاق نه کړه - نو حکم دادے چه فوراً به راځی - او دکوم پورے چه ئې عدت نه وی پوره شوے ددے کوره به نه اوځی - نه دورزے اونه دشپے - او په کوم کور کښې چه عدت تیره وی - دهغې صحن نه راوتے شی - خو هله که په دغه صحن کښې دبل چا کورونه نه وی - او په عدت کښې ئې دبل سره نکاح صحیح نه دے - برابره خبره ده چه طلاق رجعی وی اوکه بائن - یووی اوکه دوه - اوکه درے - او په عدت کښې ئې نفقه او دسکونت ځائې په خاوند دے - اوکه په بائن طلاق یا په درے طلاقه ئې طلاق نه کړے وه - او خاوند ورسره په دغه کور کښې اوسیده - نو په میئنځ کښې

[1] درمختار و ردالمحتار ۱۲ [2] درمختار وردالمحتار ۱۲ [3] شرح التنویر وردالمحتار ۱۲

پرده ضروری ده - چه خلوت ئے ورسره رانه شی -

**مسئله** :- که عدت دوفات وُ - نو دُ ښځې هم دا حکم دے - چه دُ خاوند دُ مرګ په وخت کښې چه دا په کوم کور کښې اوسیده - عدت به په هغې کښې تیره وی - بلکه که دُ کاڼو یا نو کره یا دُ پلار کره تلے ده - او دُ خاوند دُ مرګ نه خبر شوه هم سمدستی راځی - عدت به دلته تیره وی - وُځی به نه - لیکن که غریبه وه - کډ راتې ئے نه کیده - او دُ ورزے ئے څه خواری خسکی کوله - نو وتے شی - خو شپه بل ځائے نه شی کولے - او دُ وفات په عدت کښې ښځې له نفقه نشته - خرچه به خپله کوی - البته دُ خاوند په میراث کښې چه څه حصه وی هغه به وی - او دُ کوم پورے چه ئے عدت نه وی ختم شوے - میره نه شی کولے -

**مسئله** :- په کوم کور کښې چه عدت تیره وی - عدت دُ طلاق وی - او که دُ وفات - که دُ هغې نه وپستلے شوه - یا کور راو غورزیده - یا ئے دُ پریوتو یره وه - یا دغه کور دکرایه وُ - او دُ دے ئخه څه نه وو

غرض دا دے چه سخت ضرورت وُ - نو دغه کور پریخودے شی - که عدت دُ وفات وُ - نو هغې کور نه دِ نزدے مناسب ځائے او ګوری - او که عدت دُ طلاق وُ - نو کوم ځائے چه وله خاوند او ګوټ -

| ثبوت دُ نسب |
|---|

دحمل موده زیات نه زیات دوه کاله ده - یعنے کیدے شی چه بچے دُ دوؤ کالو پورے دُ مور په ګیډه کښې وی - بیا زوندے پیدا شی - او دُ دے نه زیات دُ مور په ګیډه کښې نه شی پاتے کیدے - او کمه موده دحمل شپږ میاشتے ده - دُ دے نه کم نه شی کیدے -

**مسئله** :- که سړی ښځه په نکاح واخسته - بیا دُ نکاح دُ وخت نه دُ دے وخت پورے لا شپږ میاشتے نه وے پوره شوے - او دغه ښځې بچے وشه - نو دا بچے به حرامی ګڼلے شی - او نسب به ئے ثابت نه وی - او که پوره شپږ میاشتے شوے وے - یا دُ شپږو میاشتو نه زیاته موده شوے وه - او دُ هغې بچے وشه نو دُ دے بچی نسب به د دغه خاوند نه ثابت وی - برابره خبره ده چه خاوند اقرار کوی چه دا زما بچے دے او که چپ وی - دُ دواړو یو حکم دے -

او که خاوند اووے - چه دا بچے زما نه دے - نو لعان به وکړے شی - کله چه

ﻠ هدایه ۱۲ ﻠ درمختار وشامی ۱۲ ﻠ هدایه ۱۲ ﻠ هدایه ۱۲

مینه بیان شوی دی۔

**مسئله** :- که دَ ښځې بچې وشه۔ بیا ښځه خاوند مختلف شو۔ خاوند اووئیل ماچه ستا سره نکاح کړې دَ هغې صرف څلور میاشتې شوی۔ او ښځې اووئیل چه شپږ میاشتې شوی۔ نو خبره دَ ښځې معتبره ده۔ او دا بچې د دغه خاوند دے۔ خو صاحبین وائی چه ښځه به قسم هم کوی۔

**مسئله** :- که کافر سړی مسلمانه ښځه په نکاح واخستنه۔ او دَ هغې نه ئې بچې وُشه۔ نو دا بچې ثابت النسب نه دے۔ ځکه چه دا نکاح باطل دے۔

**مسئله** :- که مثلاً خاوند غائب وُ۔ او ښځې دَ هغه د وفات په وجه بل میړه وکه۔ او دده نه ئې بچې وشه۔ بیا ئې میننې خاوند پیدا شه۔ او معلومه شوه۔ چه دا خو غلطه شوے۔ نو حکم دا دے چه دا ښځه خو ده دَ مینني خاوند او دغه بچې ئې دے دوویم خاوند۔ خو هله که بچې دَ دغه دوویم خاوند دَ نکاح نه کم ازکم شپږ میاشتې پس پیدا شوے وی۔

**مسئله** :- دَ خاوند لروکے ښځې بچې که پیدا شه۔ نو دَ بچی نسب به دَ دغه خاوند نه ثابت وی۔ په څه شبهے سره هغې ته حرامی ویل لوئے گناه دے۔ او شریعت دَ اتیا دُرے سزا مقرر کړے۔ او که خاوند اووے چه دے ځما نه دے۔ نو لعان به کوی۔ بلکه که خاوند څرته په لرے وطن کښ وُسیده۔ او دلته ئې دَ ښځې بچې پیدا شه۔ نو دا به هم شرعًا دهغه وی۔ او نسب ئې ثابت دے۔ وجه داده چه شریعت دَ نسب په ثبوت کښ ډیرہ دَ احتیاط نه کار آخلی۔ دکومے پورے چه ممکنه وی۔ حرامی ئې نه کرځوی۔ او که ثبوت دَ نسب ئې نا ممکن وی۔ حرامی ورته وائی۔ لکه دَ ښځې بچې پیدا شه۔ او خاوند ئې وړوکے نابالغ هلک وُ۔ نو دا بچې ثابت النسب نه دے بلکه حرامی دے۔ او که خاوند خو ئې بالغ وُ۔ لیکن د نکاح نه پس لا شپږ میاشتے نه وے پوره شوے او بچې وشه۔ دا هم حرامی دے۔

**مسئله** :- که دَ بالغ جینئ خاوند نه وُ۔ بلکه مړ شوے وُ۔ او دَ هغه دَ مرګ نه پس دوه کاله پوره شوی وُو۔ ور ستوئې بچې وشه۔ نو دا حرامی دے۔ او که دوه کاله لا نه وُو پوره شوی چه بچې ئې وشه۔ نو دا حرامی نه دے بلکه دَ هغه مړ خاوند دے۔

---

ك هدایه ۱۲ ؎ شرح التنویر ۱۲ ؎ درمختار وشامی ۱۲ ؎ هندیه وهدایه ۱۲

لیکن که ښځې اقرار کړے وُ - چه ځما عدت ختم شوے دے - بیا یه حرامی وی - دا ځکه که جینۍ نابالغه وه - او خاوند ئې مړ شه - او دے د حمل دعوه نه وه کړے - او د عدت ختمیدو اقرار ئې هم نه وُ کړے - بیا د هغه د مرګ نه پس لا لس ورځے او څلور میاشتے نه وے پوره - او د دے بچے وشه - نو ثابت النسب دے - او که دوه مره موده شوے وه - هله وشه - نو ثابت النسب نه دے -

**مسئله** :- که ښځه بالغه وه او په طلاق رجعی سره ئې طلاق کړه - او هغه مدخول بها - یعنی صحبت ئې ورسره کړے وُ - بیا د طلاق نه پس پوره دوه کاله وشو - یا زیات - او هغې د خپل عدت ختمیدو اقرار نه وُ کړے - او بچے ئې وشه نو دا بچے د دغه خاوند دے - مونږ به داسے ګڼو - چه خاوند پس د طلاق تو لو نه په عدت کښې د هغې سره صحبت کړے وُ - او کیدے شی - چه د هغې د طهر زمانه اوګده وه - رجوع به ئې ورنه کړے وی - نو ښځه وس ددۀ ښځه ده - نکاح ئې نه ده مات - او که دے وائی چه دا بچے ځما نه دے - نو لعان دِ وکی - او که د طلاق نه پس لا دوه کاله نه وُو پوره شوی - او دے د عدت د تیریدو اقرار نه وُ کړے - او بچے ئې وشه - په دے صورت کښې به هم بچے د دغه خاوند ګڼړے شی - مونږ به وایُو چه حمل ئې د طلاق نه مینه وُ - دومره موده د موریه ګیډه وُ - او س پیدا شه - نو د ښځې عدت ختم شه - د نکاح نه او ونه - دا اقول بیان د طلاق رجعی وُ -

او که بالغه ښځه په طلاق بائن سره طلاق کړے شوه - یا په درے طلاق ده بیا پس د طلاق نه لا دوه کاله نه وُو پوره شوی - او دے د عدت تیریدو اقرار نه وُ کړے - بچے ئې وشه - نو دا بچے د دغه خاوند دے - مونږ به وایُو چه د طلاق نه مینه ئې دا حمل وُ - او که د طلاق نه پس دوه کاله پوره شوی وُو - هله بچے وشه نو دا بچے به حرامی ګڼړے شی - لیکن که خاوند ئې دعوه کوله چه دا بچے ځما دے - بیا به ددۀ وی - کیدے شی چه دے د هوکه شوے وی - او دغه ښځې سره ئې په عدت کښې په شُبهے سره صحبت کړے وی -

**مسئله** :- که ښځه نابالغه جینۍ وه - خو بلوغ نه نږدے وه - هغه ئې طلاق کړه - بیا هغې د طلاق نه درے میاشتے پس اقرار وکه - چه ځما عدت ختم شه - بیا د دے اقرار نه پس لا شپږ میاشتے نه وے پوره او بچے ئې وشو - نو دے ثابت النسب دے

---

[1] هدایه ودرو در [2] فتح القدیر و در مختار وشامی [3] یعنی د هغې کالو وه خو څه علامت د بلوغ پکښې لا نه وُو او خاوند ورسره صحبت کړے وُ

اوکه د اقرار نه پس ئې میاشتې پوره شپږ شوې وې یا زیاتې . هلته ئې بچې وشه . نو ثابت النسب نه دې . اوکه د عدت تیریدو اقرارئې نه وُ کړې . اود ا دعوه ئې هم نه وه کړې . چه حُما حمل دے . نو طرفین رح وائي چه دغه طلاق نه پس که لا څه میاشتې نه وې پوره . او بچې وشه . نو هم ثابت النسب دے . کنی نو نه . اوکه جینئ په عدت کښې اقرار د حمل کړې وُ . نو په شان د بالغې ده . یعنې په دې صورت کښې د بچي د نسب ثابتیدو د پاره د نهو میاشتو نه کم والے ضروري نه دے . بلکه که د دوه کاله پوره کیدو نه مخکښې ئې بچې وشه . نو ثابت النسب به وي . د طلاق بائن په صورت کښې . اوکه طلاق رجعي وُ . نو که د اوو ویشتو میاشتو پوره کیدو نه مخکښې وشه . ثابت النسب به وي . کنی نو نه .

**مسئله** :- برابره خبره ده چه عدت د وفات وي اوکه د طلاق . او طلاق رجعي وي اوکه بائن . که ښځې اقرار وکړ چه حُما عدت تیر شه . اود عدت تیریدو احتمال هم وُ . د دې نه پس ئې لا شپږ میاشتې نه وې پوره او بچې ئې وشه . نو دا بچې ثابت النسب دے . او معلومه به شي چه ښځې اقرار په دروغه کړې وُ . اوکه شپږ میاشتې پوره شوې وې . بچې ئې پس د هغې نه وشه . نو دے ثابت النسب نه دے . کیدې شي چه پس د اقرار نه ئې د بل چا نه حمل شوے وي . او د دې مسئلې حکم په مذکوره مسئلو کښې ملحوظ ساتل ضروري دي .

| د بچي د پرورش حق |
|---|

که د ښځې او د خاوند په مینځ کښې جدائي را غله . او د نکاح پیرنګ وشو کیدو . او د دې په غیږ کښې بچې وُ . نو د هغه د پرورش حق د ټولو نه مخکښې مور له دے . پلار ئې په زور نه شي اخستے . او د بچي خرچه صرف په پلار ده . اوکه مور ئې پرورش نه کا وُ . نو جبر پې نشته . اوکه مور ئې نه وه . بیا د پرورش حق د بچي د مور مور له دے . اوکه هغه نه وه نو د مور د مور مور له . د بره پورې په ترتیب سره . که دا نه وي . بیا د پلار مور له . بیا د پلار د مور مور له . دا رنګ د بره پورې . د دې نه پس د سکه خویندو حق دے . چه د خپل رور پرورش کوي که سکه خور ئې نه وه . نو کومه چه خورچه ورسره صرف په مور کښې شریکه وي . هغه حقداره ده . بیا کومه چه ورسره شریکه وي صرف په پلار کښې . بیا د سکه خور لور بیا د مورځ وېې خور لور . بیا د پلار وېې خور لور . بیا د مور سکه خور . بیا د مور مور

---

له فتح القدیر و شامي ۱۲ سله در مختار ورد المحتار و شرح البدایه ۱۲

راوړے خور۔ بیا د مور پلار دراوړے خور۔ بیا ډ مور خورزه۔ په دے ترتیب سره۔ بیا د پلار سکه خور۔ بیا ډ پلار مور راوړے خور۔ بیا ډ پلار، پلار دراوړے خور۔ بیا ډ پلار خورزه۔ په دے ترتیب سره۔ بیا ډ مور ډ مور خور په مذکوره طریقے سره۔ بیا ډ پلار ډ مور خور په مذکوره طریقے۔ بیا ډ مور ډ پلار خور۔ بیا ډ پلار ډ پلار خور په مذکوره ترتیب سره۔

**مسئله** :- که ډ بچي مور یو داسے سړي په نکاح واخست چه ډ هغه ډ بچي محرم رشته دار وي۔ یعني داسے نسبي ئے وي۔ چه په دغه رشته کښ ورسره ډ دغه بچي نکاح نه وي جائز۔ مثلاً ډ هغه تره ئے واخست۔ نو ډ مور حق ډ پرورش باقي دے۔ او که داسے سړے ئے په نکاح واخست چه هغه د دغه بچي محرم رشته دار نه وي۔ نو ډ مور حق او عورزیږي۔ او که ډ مورنه سیوا ډ بچي ډ پرورش بله حقداره وه۔ لکه خور تروروغیره او ډ هغې نکاح داسے سړي سره وشه۔ نو ډ هغې حق ډ پرورش هم اوعورزیږي۔ نو په تیره شوے مسئله کښ چه کوم ترتیب ذکر شه۔ ډ هغې مطلب دادے چه دکوم ښځے حق مینه دے۔ که هغه مړه وه۔ یائے پرورش ډ بچي نه قبلاوي۔ یائے حق پریخي وي۔ یائے ډ یو اجنبي سره نکاح کړے وي۔ یا په څه بله وجه اهل ډ پرورش نه وه نو ورپسے چه کومه ذکر ده۔ بیا حق ډ هغې دے۔

**مسئله** :- که ډ اجنبي سره ئے نکاح کړے وي۔ په دے وجه ئے حق ډ پرورش عورزیږلے وي۔ او بیا ډ هغه ډ نکاح نه اووته۔ نو وس بیا حقداره شوه ځکه چه مانع لاړه۔

**مسئله** :- کومه ښځه چه ډ بچي پرورش کوي۔ هغه ډ نفقے مستحقه وي لیکن که داډ هغه ډ پلار منکوحه وي۔ یائے ډ طلاق په عدت کښ وي۔ بیا نه۔ ځکه چه دے له خو یا نفقه دخپل بچي پرورش واجب دے۔ او نفقه وله بے ډ دے نه هم په خاوند شته۔

**مسئله** :- ډ بچي په رشته دارو ښځو کښ ډ هغه ډ پرورش ښځه هیڅوک نه وه۔ یا وه خو مستحقه نه وه۔ نو بیائے حق ډ عصبه دے۔ په ترتیب ډ میراثے سره۔ لکه چه ډ نکاح ډ ولي په باب کښ مینه په تفصیل سره بیان شوي دي۔ لیکن که دارشته دارئے محرم نه وي او ډ جینئ په سپارلو کښ ډ فتنے یره وه۔ نو قاضي ډے وله بل مناسب ځائے وکوري۔

---

له هندیه و در ورد ۱۲ ۲ه تبیین، لحقایق ۱۲ ۳ه درمختار وشامی ۱۲

**مسئله** :- پرورش ئې مور کوی او که بله ښځه - د کوچني پورې چه د هلک عمر د
اوو کالو نه وی شوې - د پرورش حق ئې شته - او چه د اوو کالو شه - نو وس ئې پلار
جبراً اخستے شی - او د جینۍ د نهو کالو -[1]

**د نفقې بیان** | د ښځې جامې او خوراک په خاوند دے - او په نفقه کښې به کتے شی - د
دواړو حالت ته - که دواړه مالدار وی - نو ښځې له به نفقه د مالدارئ ورکوی - او که
دواړه غریب وی نو د غریبئ - او که خاوند مالدار وو او ښځه غریبه وه - نو د متوسطے
درجې -[2]

**مسئله** :- که ښځه د پلار کره وه - هم ئې نفقه په خاوند ده - لیکن که خاوند
کور ته راوستنه او دا نه راتله نو نفقه وله نشته - البته که د هغې څه مهر معجّل
د ده په ذمه پاتے وُ - د هغې مطالبه ئې کوله په دے وجه نه راتله - نو نفقه وله
شته - او که مهر معجّل ئې وصول کړے وُ - یا ټول مهر موجل وُ (یعنی نیټه دار)
یائې خاوند ته مهر معاف کړے وُ - یائې ټول وصول کړے وُ - او هسے نه راتله
نو نفقه وله نشته - هاں که د خاوند کره راغله بیا به وله ورکوی -[3]

**مسئله** :- که ښځه ناجوړه شوه - نو هم ئې نفقه په خاوند ده - برابره خبره
ده - چه د پلار کره ناجوړه شوې وی - او که د خاوند کره - لیکن که د پلار کره ناجوړه شوه - او
خاوند راوسته - خو نه راتله - نو نفقه ئې په خاوند نشته - او د ناجوړتیا په حالت کښې د
دارو او د طبیب ډاکټر خرچه صرف په خاوند نه ده - که په خپله رضائے ورکړه - نو دا
ئې مهربانی ده -[4]

**مسئله** :- که ښځه حج له لاړه نو د دغه زمانے نفقه ئې په خاوند نشته - لیکن
که خاوند ورسره تلے وی - نو مستحقه ده - خو د زیاتی نه - بلکه کومه نفقه چه ورله
په کور وه - صرف د هغې او د کاډی - او د جهاز وغیره کرایه - او سفر خرچ ئې په خاوند
نشته -[5]

**مسئله** :- که ښځه د لوئی کور وه - چه پخپله ئې کار نه کاوه - یا ناجوړه نه
کولے ئې نه شه - نو خاوند به وله تیار طعام راوړی - یا به څوک ښځه کوی - چه
دا کار وله کوی - او که ښځه جوړه وه - او خپل کار ئې په خپله کاوهٔ - بیا [illegible]
ښځه په خپله کوی - په اخلو پخولو او په وړلو وغیره وله اُجرت نشته - ځکه

---

[1] شرح التنویر ۱۲ [2] هدایه ۱۲ [3] عالمگیری ۱۲ [4] شرح التنویر ۱۲ [5] عالمگیری ۱۲ [6] درمختار و رد المحتار ۱۲

چه داپې واجب دی دیانةً - او دَ سړی په ذمه دا دی - چه کچه اناج وله راوړی - او مېمین نغرے - شمع - خانک - ګحخئی - وغیره لونی لرګی - یعنې دَ کور ضروریات - لبس - او تیل صابون - او دَ ښځې دَ اوداسه او دلمبلو - او د جامو وینځلو اوبه دَ خاوند په ذمه دی - او دَ ښځې چاے او رانجه - او د ارنګ نور زاین ځیزونه دَ خاوند په ذمه نه دی - او دَ هغې دَ جامو وینځلو خرچه دهوبی له ورکول هم دده په ذمه نشته - ځپلې جامې دِ په ځپله وینځی - البته که خاوند پې احسان کاوٗ - نو بله خبره ده -

**مسئله** :- که دَ کال نفقهٔ وله مخکښ ورکړه - بیا دے مړ شه - نو اګر که هغه نفقه وس دَ ښځې څخه موجوده وی - دَ ښځې نه به نه آخستے کیږی -

**مسئله** :- که خاوند دَ ښځې دَ نفقې نه عاجز شه - نو دا نه - چه په دے وجه به دَ دو اړو په مینځ کښں تفریق راوستے شی - بلکه قاضی به وله په هغهٔ مناسبه نفقه مقرر کی - بیا به هغې نه اووائی چه نه دَ چانه قرض آخله دده په حواله -

**مسئله** :- دَ ښځې تیره شوے نفقه په خاوند باندے نه قرض کیږی - مګر په صورت دَ قضا کښں - او په صورت دَ رضا کښں قرض کیږی - یعنې خاوند که مثلاً درے میاشتے ښځې له نفقه نه وه ورکړے - نو وس پې دغه تیره شوے نفقه لا زمه نه ده البته که د دغه درے میاشتونه مینه ورله قاضی په ده څه اندازه دَ نفقې مقرر کړے وه یا دواړو په ځپله رضا سره څه مقدار مقرر کړے وُ - چه په میاشته کښې شل روپۍ مثلاً نو وس ئې دَ هغه تیرے شوو میاشتو د نفقې طلبو لو حق شته -

**مسئله** :- زید غائب وُ - او ځپلې ښځې له ئې نفقه نه راليږله - او د هغه دلته دَ بکر څخه څه مال امانت پروت وُ - او مال دده قسمه وُ - چه بے دَ هغې دَ خرڅولو نه پې دَ ښځې نفقه کیده - لکه روپۍ پیسے - دانے - جامے وغیره - او بکر اقرار کاوٗ - چه دا مال دَ هغه غائب خاوند دے - او دا اقرارئې هم کاوٗ چه دا دَ هغه ښځه ده - یا قاضی ته په ځپله معلومه وه - نو قاضی به مینه دَ ښځې نه ضامن واخلی - او هغې له به دا قسم هم ورکړی چه زید ماله نفقه نه ده راکړے او زه نافرمانه نه یم - او نه ئې طلاقه کړے یم - چه څومره عدت م تیر شوے دے - نو دده نه پس به وله په دغه مال کښں نفقه مقرر کی -

اوکه دَ زید وړوکے ځوئے وُ - یا وُ بالغ - خو شل کمزور وُ - یائے لور وه وړه - یا لویه

له هدایه و در مختار ۱۲ سه شرح التنویر ۱۲ سه در مختار ۱۲ سه شرح التنویر و رد المحتار ۱۲

خو غريبه - يا ئې مور او پلار دواړه غريبانان - نو دَدې دَپاره هم دَ نفقې مقرر کولو حکم شته -

او که دَ زيد څوک قرضخواه وُ - هغه دا غوښته - چه دَ بکر نه ماله دزيد په قرضه کښې مال وصول کړے شي - نو دا نه شي کيدے - دا حکم په غائب باندے جائيز نه دے -

مسئله :- که ښځه ډيره وړه وه - چه دَ هغې کار نه وه - نو دَ هغې نفقه په خاوند نه ده واجب - او که خاوند نابالغ وُ - او ښځه لويه وه - نو نفقه ورله په خاوند واجب ده -

مسئله :- دَ ښځې يو دا حق هم دے - چه خاوند به ئې په جدا کور | داستوګنې کور
کښې ..... چه په هغې کښې ورسره دده څوک نسبي نه وي - دَپاره دَدے چه ښځه او خاوند په آزادئ سره خبرے اترے کولے شي - البته که دَده څوک وړوکے بچے وُ - چه په ښه بد نه پوهيدو - که هغه ورسره اوسي خير دے - او که دَ خاوند نور څوک نسبيان ورسره په دغه کور کښې اوسيدل - او ښځه په شريک کور کښې راضي وه بيا ورله جدا کور نه دے واجب -

مسئله :- که ښځې له ئې په کور کښې وړه کوټګۍ ورکړه - چه هغه پکښې خپل سامان په حفاظت سره کيدی - او په هغې کښې دوسي - او کيلي ئې صرف دَ هغې په لاس وي - بس دا ورله پوره ده - دَدے نه زياته دعوه نه شي کولے - چه ماله ټول کور خالي کړه -

مسئله :- خاوند له دا حق شته - چه خپل سخرا و خواخے او اورخے او خيينے کور ته نه را پريږدي - او که دَ ښځې څوک بل رشته دار وُ - نو دَ هغه دَ منعه کولو حق ئې هم شته - خو دومره خبره ده - چه مور او پلار ئې دَ ملاقات دَپاره په جمعه کښې يو وار را تلے شي - کنې نو په جمعه کښې ورله يو ځل دا هم تلے شي - او دَ بل رشته دار دَپاره په کال کښې دَ يو وار تلو راتلو اجازت شته - بس - ليکن خاوند له ئې اختيار دے چه ډير ساعت ته ئې نه پريږدي - نه دَ هغې مور - نه پلار - نه بل رشته دار - او په دے مسئله کښې دَ رشته دار نه مراد هغه نسبي دَ ښځې دے چه نکاح ئې ورسره هميشه دَپاره حرام وي - او دَچا سره چه ئې نکاح حرام نه وي -

له هدايه ۱۲ ؎ درمختار و شامي ۱۲ ؎ هدايه و شرح التنوير ۱۲ ؎ درمختار ورد المحتار ۱۲

ښځه دا سے دے لکه پردے۔

**مسئله** :- که د ښځے پلار ښل کیږي۔ یا ړوند دا جوړه وي۔ او دَ خدمت ئے څوک نه وي۔ نو د اورله دَ ضرورت سره موافق روزانه تلے راتلے شي۔ بلکه پلار که کافر وي۔ هم دغه حکم دے۔ او که خاوند منعه کوله۔ بیا ورله هم شرعاً اجازت شته۔ خو دومره خبره ده۔ چه دَ خاوند منعه کولو په صورت کښں که لاړه۔ نو نفقه به ورله نه وي۔

**مسئله** :- ښځے له پکار دی چه دَ پردو کره نه ځي۔ او دَ واده سنت وغیره په څېره کوره کښں شرکت نه کوي۔ اګر که دا ګنړه وي دَ خپلوانو کره۔ وجه داده چه په داسے موقعه کښں اکثر په پردو سړو سترګے لګي۔ او دَ فتنے دَ اندیښے نه خالي نه وي۔ او که خاوند ورله په داسے صورت کښں اجازت ورکه۔ نو دے هم ګنهګار شه۔ دَ دے نه دا هم معلومه شوه۔ چه ښځے چه بابا ګانو له ځي۔ او هلته دَ پردو سړو سره نظر بازي کوي۔ دا شرعاً او عقلاً ډیره ناکاره او دَ افسوس خبره ده۔ او دَ غیرت په لمنے بدنما داغ دے۔

**حدیث**[۳] :-" که ما چاته حکم کولے۔ چه سِوا د خدائے پاک نه دے بل چاته سجده وکی۔ نو ښځے ته به م حکم کړے وُ۔ چه خپل خاوند ته دے سجده کوی " نو مطلب دادے چه سِوا دَ خدائے پاک نه بل چاته سجده جائزه نه ده۔ له دے وجے نه م دا حکم ونکه۔ او دَ خاوند خو دومره حق دے۔ چه نبی علیه السلام په دے حدیث کښں فرمائي۔ " چه خاوند که ښځے ته حکم وکه چه دَ دے ژیړ غرونه ښځه تور غرله ګټے وړه۔ او دَ ښځے نه سپین غرله۔ نو هم ښځے له پکار دی چه داسے وکی " او دَ غره رنګ چه ئے بیان که۔ دَ دے نه مطلب مبالغه ده په لري والي کښں۔ ځکه چه دَ مختلف رنګونو غرونه اکثر لرے لرے وي یو بل نه نژدے نه وي۔ | دَ خاوند حقوق

**حدیث**[۴] :- ښځه چه خپل پنځه وخته مونځ کوی او دَ رمضان روژے نیسي۔ او خپل ځان دَ بدکارئ نه محفوظ ساتي۔ او دَ خپل خاوند اطاعت او فرمانبرداری کوی نو دَ ښځے خوښه ده دَ جنت په هره دروازه چه داخلیږي۔ یعنے دَ جنت اته دروازے دي په کومه دروازه چه غواړي جنت ته ننوتل غواړي۔ څه بندیز به ورته نه وي۔

**حدیث**[۵] :- کوم وخت چه سړے خپله ښځه دَ خپل کار دَ پاره رابلي۔ نو دا دے

---

[۱] درمختار وشامی ۱۲ [۲] درمختار وشامی ۱۲ [۳] رواه احمد ۱۲ [۴] رواه ابونعیم فی الحلیه ۱۲ [۵] رواه الترمذی ۱۲

وله خا مخاراشی اگرکه داپه تناره وی" یعنے اگرکه په ضروری کار کښې مشغوله وی۔ هم دے ورشی۔

**حدیث** :۔کوم وقت چه سړے خپله ښځه خپل کټ ته راغواړی۔ او دا رانشی۔ (بے دَعذرِ شرعی نه) نو دے دغه شان په غصه کښې شملی۔ نو ملایکے په دغه ښځه تړله شپه لعنت وائی تر سحره پورے۔

**حدیث**[۲] :۔کومه ښځه چه په دنیا کښې خپل خاوند له تکلیف ورکوی۔ نو په قیامت کښې چه به کومه حوره دَدغه سړی ښځه وی۔ هغه دغه ښځے ته وائی۔ چه خدائے دے تا مړه کړی۔ دے مه رنځه وه۔ دے خو تا څخه میلمه دے۔ زر ؛ چه ستا نه به مونږ ته راشی۔

او په یو **حدیث**[۳] کښې د دریو تنو ذکر راغلے دے۔ چه نه ئے مونځ قبلیږی۔ نه بله نیکی۔ نو په هغه دریو کښې ئے یوه ښځه هم شمارلے ده۔ هغه ښځه چه خاوند ترے خفه وی۔

---

[۱] متفق علیه ۱۲ [۲] رواه الترمذی وابن ماجه ۱۲ [۳] رواه البیهقی ۱۲ [۴] دا په حقیقت محمول نه دے۔ بلکه مراد ئے مبالغه ده په اطاعت کښې ۱۲ منه

# كتاب الايمان

**دقسم بیان** قسم[1] په درے قسمه دے۔ یو ته غموس[2] ویلے شی۔ بل ته لغو[2]۔ بل ته منعقده[3]۔

غموس دا دے چه په یو تیر شوی کار باندے په دروغه قسم اوخوری۔ مثلاً زید پرون نه وی راغلے۔ اوس اوائی۔ چه قسم دے زه پرون راغلے وم۔ یا ئے د چانه څه شے وړے وُ۔ وس وائی چه قسم دے ما نه دے وړے وغیره وغیره۔ دا رنگ که چا ته معلومه وه۔ چه دا بکر دے۔ او قصداً ئے په دروغه قسم وکه چه دا خو عمر دے نو دے ته هم غموس ویلے شی۔ د غموس د پاره کفاره نشته۔ بلکه دا یو عظیم گناه دے۔ توبه دے اوباسی۔ او استغفار دے کوی۔

او لغو دے ته وائی چه په تیره شوے خبره قسم اوخوری په دے گمان چه هغه دا ده۔ لکه چه زه ئے وایم۔ او په واقع کښ هغه شان نه وی۔ مثلاً د زید خیال دے چه عمر پرون راغلے وُ۔ نو وائی قسم په خدائے دے چه عمر پرون راغلے وُ۔ او حال دا وی چه هغه نه وی راغلے دا رنگ که د چا گمان وُ چه دا زید دے نو قسم ئے اوخوړ چه دا زید دے او هغه عمر وُ۔ نو دے ته هم لغو ویلے شی۔ د لغو حکم دا دے چه نه ورله کفاره شته۔ نه پکښ گناه۔ بلکه امید دے چه خدائے پاک به ئے په دے نه نیسی۔ لیکن[5] په هره خبره باندے بے ضروره قسم خوړل لکه چه د بعضو خلقو عادت وی۔ ډیره بده خبره ده۔ د خدائے پاک د نوم بے ادبی پکښ راځی د دے نه پرهیز لازم دے۔

او منعقده دے ته وائی چه په یو راتلونکی کار باندے قسم اوخوری۔ او وائی چه زه به فلانے کار وکم۔ یا او وائی چه فلانے کار به ونه کم۔ دا قسم قسم که ئے مات که۔ نو کفاره به ئے ورکوی۔ او د کفارے بیان به راشی۔

**مسئله[3]** که چا قسم اوخوړ۔ په خپله رضا چه زه به دا کار وکم۔ یا دا چه دا کار به ونه کم۔ یا په جبر سره ئے اوخوړ۔ یعنے بل چا په دے قسم مجبوره کړے وُ

په دے وجه ئے دا قسم وکه - یائے په غلطئ سره اوخوړ - یعنے ویل ئے بل څه - او دَ خلے نه ئے دا اووخاته - یائے په ځوَکه اوخوړ - نیت ئے نه وُ - نو دَ دے ټولو صورتونو حکم دا دے چه قسم وشه - که مات ئے که - کفاره به ئے ورکوی - او دَ قسم ماتول هم عام دی - که قصداً مات که - اوکه په جبر سره - اوکه په هیره - اوکه په خطا یئے - دَ دے ټولو حکم یو دے - کفاره به پے راځی -

مسئله[1] :- دَ بل په قسم ورکولو سره قسم نه کیږی - مثلاً زید عمر ته اووے چه ستا دِ قسم وی دا کار وکه - نو دا نه چه دا دَ عمر قسم شه - بلکه عمر دَ هغے خلاف کولے شی - کفاره پے نه راځی -

مسئله[2] :- که دَ ګناه په خبره چا قسم وکه - مثلاً وے وئیل چه قسم په خدائے دے مونځ به ونکم - یا دَ مور پلار سره به خبرے ونه کم - یا نن به غلا کوم وغیره وغیره - نو قسم ئے وشه - خو ماتول ئے واجب وی - ضروری ده - چه دا قسم مات کی - او کفاره ورکی - ګنی نو ګناه ده - او داسے قسم دے چرے نه کوی -

مسئله[3] :- که چا قسم وکه - چه زه به آسمان ته خیژم - یا دا کتمه به دَ سرو کوم نو قسم ئے وشه - خو فی الحال حانث شه - په سبب دَ عجز - نو کفاره به ورکوی - اوکه چا قسم وکه چه زه به نن دد ے کوزے دا اوبه څښم - او په کوزه کښ اوبه نه وی نو قسم نه دے شوے - کفاره پے نشته -

مسئله[4] :- که چا قسم وکه - بے دَ تخصیص نه - چه زه به فلانے کار وکم - نو دا قسم به هله پوره کیږی - چه دغه کار آئینده هیچرے ونکی -

داسے که چا قسم وکه چه زه به فلانے کار وکم - نو که په عمر کښ ئے یو وار وکه هم قسم ئے پوره شه - اوکه دَ مرګه پورے ئے ونکه - عاجز شه - وس دے وصیت دَ کفارے وکی -

مسئله[5] :- دَ علاقے حاکم چاله قسم ورکه - چه دے علاقے ته که څوک مفسد سړے راشی نو ماته خبره وکړے - او هغه قسم وکه - نو دا قسم به دَ هغه وقت پورے قسم وی چه دغه حاکم دَ دغه علاقے حاکم وی -

مسئله[6] :- زید قسم وکه مثلاً چه زه به دا ځوکے فلانی ته هبه کم - نو هغه

---

[1] شرح التنویر ۱۲ [2] شرح التنویر ۱۲ [3] هدایه ودرمختار ۱۲ [4] هدایه ۱۲
[5] درورد ۱۲ [6] هدایه ۱۲

ته ئې هبه که۔ خو هغه قبول نه که۔ نو دغه قسم پوره شه۔ خیر دے که هغه قبول نکه۔

| د قسم الفاظ | که چا اووے چه قسم دے په خدائے پاک دے۔ یا قسم دے په خدائے پاک |
|---|---|

وی۔ قسم خورم په خدائے پاک سره۔ قسم دے په الله پاک۔ دَ خدائے پاک په عزت او په جلال دے قسم دے۔ دَ خدائے پاک په لوئیئے دے قسم دے۔ خدائے گواه دے چه خدائے پاک حاضر ناظر دے چه۔

یا دَ خدائے پاک نوم ئې وانه غستلو۔ خو هسے وئیل چه قسم دے۔ یا په قسم سره وایم۔ یا قسم دے وی چه دا کار به ونکړم۔ یا دَ دے په مثل ئې نور الفاظ د قسم اووے۔ نو دا قسم دے۔ که مات ئې که کفاره به ورکوی۔ او که قسم ئې په قرآن وخوړو۔ نو ځینې عالمان وائی چه دا قسم نه دے۔ او ځینې وائی چه دا هم قسم دے په سبب دَ عرف۔

**مسئله:۔** که چا اووے چه ما که فلانے کار وکه۔ نو په ما دے غضب دَ خدائے وی۔ یا ئې اووے چه زه به زناکار یم۔ زه به شرابی یم۔ سود خوره یم۔ غل به یم۔ سړے به نه یم۔ ځما دے لاسونه ارتاؤ شی۔ مردار دے شم۔ عمر دے لنډ شی سر دے او غوږ زینړی۔ نو دا قسم نه دے۔

او که دائے اووے چه ما که فلانے کار وکه۔ نو مسلمان به نه یم۔ زه به کافر یم۔ زه به هندو یم۔ یهودی به یم۔ زه به فرنګے یم۔ خدائے دے کانړ دُ دنیا تیر کی دَ قرآن نه به ویزار یم۔ دَ رسول نه به ویزار یم۔ نو دا قسم دے۔ خو دا رنګ قسم هیڅ چرے نه دی خوړل پکار۔

**مسئله:۔** دَ خدائے پاک نه سوا دَ بل چا قسم نشته۔ نو که چا اووے چه په رسول الله دے قسم وی۔ په کعبه شریفه دے قسم دے۔ په خپله ځوانئے دے قسم دے۔ دَ خپلو بچو په سر دِ قسم وی۔ فلانے بابا دے اووهی۔ وغیره وغیره نو دا قسم نه دے۔ که هغه کار ئې وکه۔ کفاره پے نه راځی۔ لیکن دَ خدائے پاک نه سوا په بل چا قسم خوړل لوئے دَ ګناه خبره ده۔ په حدیث شریف کښې ئې ممانعت راغلے دے۔

**مسئله:۔** که چا په ځان باندے خپل حلال شے حرام که۔ نو حرامیږی نه پے۔ خو قسم شه۔ نو که قسم ئې مات که کفاره به ورکوی۔

مثلاً په لاس کښې ئې خپلے روپئې وے۔ وے وئیل دا روپئې په ما حرامے دی۔

---

ؔ در مختار و رد المحتار و هدایه ۱۲ ؔ هدایه و در ۱۲ ؔ فتح القدیر ۱۲

نو که هغه ئے پخپل خرڅ کښې راوسېتے دَ قسم کفاره به ورکوی۔
او که پیاله سره خیراتی ورکړے۔ یا ئے هبه کړے نو کفاره پرې نشته۔ خبره
پوره شوه۔

**مسئله**:۔ که دَ قسم سره ئے متصل بلا فاصله انشاء الله تعالیٰ ووے۔ مثلاً
ئے ووئیل چه قسم په خدائے دے داکار به وکړم انشاء الله تعالیٰ۔ نو دا قسم
نه دے۔

**دَ قسم کفاره** | دَ قسم ماتولو کفاره دا ده۔ چه یو مریٔ آزاد کی۔ یا لس مسکینان ما پهٔ
کی دوه وخته۔ یا ورله دَ موړولو په ځائے کچه اناج ورکی۔ لکه دَ روژے په
کفاره کښې چه ذکر شوی دی۔ یا لس مسکینانو له جامے ورکی۔ هر یو له کم نه کم
دومره زړوکے چه اکثر حصه دَ بدن ئے پرې پټه شی۔ لکه لوئے څادر یا اوګد
قمیص خو پیر زوړ نه۔ بلکه د دریوُ میاشتو نه چه زیاتے ورځے اوړلے شی۔
او که صرف پرتوګ ئے ورکه۔ یا وړوکے لنګ۔ نو په دے اکثره حصه دبدن نه
پټیږی۔ له دے وجے نه کافی نه دے۔

او که غریبے ښځے له ئے جامه ورکوله۔ نو پیوټکے به ورسره هم ورکوی۔ کنی
نو نه کافی کیږی۔ او که جامه نه کافی کیده۔ او دقیمت په لحاظ دَ اطعام سره برابره
وه۔ نو دَ اِطعام کفاره پرې اداکیدے شی۔ او دَ دے کفارے مصرف هم هغه کسان
دی۔ چه دَ زکوٰة په مصرف کښې بیان شوی دی۔

**مسئله**:۔ که دومره غریب وُ۔ چه لس مسکینانو له ئے نه جامے ورکولے
شوے۔ او نه ئے موړوله شو۔ نو پرې درپے درے روژے دے ونیسی۔ او که یوه یوه
ئے ونیوه۔ لیکن پرپے درپے ئے وُنه نیوے۔ نو کفاره نه اداکیږی۔ بلکه ښځے که یوه یا
دوه روژے ونیوے۔ بیا ئے په بله ورځ حیض شروع شه۔ نو پس دپاکئ نه به
بیا درے روژے نیسی پرله پسے۔

**مسئله**:۔ که قسم ئے لانه وُ مات کړے۔ او دَ هغې کفاره ئے ورکړه۔ نو نه
اداکیږی۔ دقسم ماتولو نه پس به بیا کفاره ورکوی۔ او څه چه ئے مسکینانو له ورکړی
هغه به ئے بیرته نه آخلی۔ هغه صدقه کرځیدلے ده۔

**کورته دَ ننه داخلیدو قسم** | که څوک قسم وکه چه زه به دے کورته چرے داخل نه شم۔

ف شرح التنویر و بحر ۱۲ ق درمختار و ردالمحتار ۱۲ ك درمختار و ردالمحتار ۱۲ ف هدایه ۱۲ ه هدایه و درمختار ۱۲
ء دکورنه مراد دار دے ۱۲ منه

بیا دغه کور ونړیده - دے ورته داخل شه - یا د هغے په ځائے بل کور جوړ کړے شه بیا دے ورته ننوت - نو حانث شه - کفاره به ورکوی - او که د هغے په ځائے جمات روغ کړے شه یا حمام - یا باغ - او دے ورته داخل شه - نو په دے نه حانث کیږی -

**مسئله** :- که چا قسم وکه چه زه به دے کوټے ته یا کمرے ته ریغے د شپے تیرولو ځائے ته) داخل نه شم - بیا هغه او غورزیده - چه وس د شپے تیرولو نه وه - یا د هغے په ځائے بله کوټه جوړه کړے شوه او دے ورته داخل شه نو په دے نه حانث کیږی - د دے مثال داسے دے - لکه قسم ئے اوخوړ چه زه به دے دیوال ته تکیه ونه کم - بیا هغه دیوال ونړیده - بیا جوړ کړے شه - ده ورته د دے نه پس تکیه وکړه -

یا چا قسم وکه - چه زه به په دے کشتئ کښې سور نه شم - بیا هغه ماته کړے شوه - او د هغه لرګو نه بله جوړه کړے شوه - بیا پکښې دے سور شه - یا چا قسم وکه - چه په دے قلم به و نه لیکم - بیا ئے هغه مات که - نوے تراش که - بیا ئے پے ولیکل - نو په دے صورتو نو کښې قسم په ځائے دے - یعنے قسم خوړونکے ته دے حانث -

**مسئله** :- که چا قسم وکه چه زه به تا کره داخل نه شم - بیا د بل جانب راغے د هغه د کور په چت ودریده - نو ځینے عالمان وائی چه په دے حانث کیږی لیکن متاخرین عالمان وائی چه نه حانث کیږی - ځکه چه په چت او دریده و نه په عرف کښې کورته داخلیدل نه شی ویلے -

**مسئله** :- کورنا ست وُ - او قسم ئے وکه چه زه به دے کورته داخل نه شم بیا د یو ساعته پورے په دغه کورکښې پاتے شه - نه حانثیږی - بلکه که بیره صووه راووت - هم نه حانث کیږی - هله به حانث کیږی چه راوځی او بیا داخل شی -

او که چا قسم وکه چه زه به دا قمیص وانه غوندم - او حال دا ؤ چه وس ئے په تن وُ - نو که فوراً ئے اوباسته - نو حانث نه شه - او که فوراً ئے و نه ایسته او څه ساعت ئے په کښې تیر که نو حانث شه -

**مسئله** :- که قسم ئے وکه چه زه به په دے کور کښې ونه وسم - او دے پکښې وسیده - پس فوراً ئے ئے کېږه راټولول شروع کړه نو حانث نه دے - او

---

لے شرح التنویر ورد المحتار ۱۲ سکه هدایه ۱۲ سکه هدایه ۱۲

که فوراً یې شروع نکړه - بلکه ساعت یې هسې تیر کړ نو حانث شه -

مسئله :- که قسم یې وکړ چه ستا کره به داخل نه شم - بیا دَ هغه په پوړۍ کښې ودرېږ - نو که پوړۍ دَ پاسه یې چت وُ - او هغه دَ دروازې بند ولونه پس دننه داخله نو حانث شه - او که د پوړۍ دَ باراني دروازې نه باهر دَ بلې په سیپ کښې ودرېږ په دې نه حانث کېږي -

مسئله[۲] :- که قسم یې وکړ چه ستا کره به قدم کې نه کدم - یا ستا کره به خپه کې نه کدم - بیا ورکړه پیزار په خپو دننه ورغ یا سور - نو حانث شه - اګر که خپه یې ورکړه نه ده ایښې - او که دا قسم خوړونکے نور تول باهر وُ - خو خپه یې وغزوله هغه یې ورکړه دننه کړه - نو په دې نه حانث کېږي - اګر که خپه یې ورکړه بې پیزاره یخ وي -

مسئله[۳] :- که قسم یې وکړ چه زه به دَ زیین کور ته چرې داخل نه شم - نو په کوم کور کښې چه زیین وُسي - معتبر هغه دې - برابره خبره ده چه هغه یې خپلې وي - او که دَ کرائې - او که سوالي وغیره -

مسئله[۴] :- که چا قسم وکړ چه زه به دَ جُمات نه وَنه وُزم - بیا یې چا ته اووې چه ما اوچت که اوم پاسه - پس هغه وییسته - نو دې حانث شه - او که ده نه وُ ویلي بلکه جبراً اوو ییستے شه - نو حانث نه دے - او که جبراً خو نه وه - بلکه دَ دې په راضي وُ - خو ویلي ورته نه وُو - او وییستلے شه نو هم حانث نه دے -

| مسئله[۵] :- که چا قسم وکړ چه زه به دَ (رمانټې) ددې ونې نه | دنه خوړلونه سکاو قسم |
|---|---|

د نخورم - نو مراد دې میوه ده - یعنے میوه به یې و نخورم - نو که ددغه ونې پڼې یې او خوړ یا پا نوه - په دې نه حانث کېږي -

مسئله[۶] :- که قسم یې وکړ چه دا پیے به و نخورم - بیا یې هغه مایه کړه - ماسته شو - نو ویې خوړه - یا یې وشربل شو ملے یې وسکے - نو په دې نه حانث کېږي - او که قسم یې وکړ چه ددې ورغۍ غوښه به و نه خورم - بیا هغه لوئے شه - غټ پیسه شه - پس دَ غټي نه یې دَ هغه غوښه او خوړه نو هم حانث شه -

مسئله[۷] :- که چا قسم وکړ چه زه به دَ دې غنمُ دَ لاس پروړیےُ وُنه خورم نو مطلب دا دے چه دا کومه ودوړی پخپله په شتی وغیره واچوی - یا یې په تناره پوړے کي

هغه به ونه خورم - نو که هغه اغټکلی وو - او پودوڼی تې پل جا پخه کړه - او ده وخوړه - نو په دې نه حانث کیږی -

مسئله[1] :- که قسم ئې وکه چه پوډئ به ونخورم - نو دکوم شی پوډئ چه په دغه عرف کښې معتاده وی - مراد به دغه وی -

مسئله[2] :- که قسم ئې وکه چه دا غنم به ونه خورم - بیائې ډ هغې نیښې ورتې کړې وې چیچلې - یائې ټوټکړی کړه - وې خواړه - نو حانث شه - او که وړه ئې کړه - ستوان ئې اوخواړه - یائې ډ هغې پوډئ نو نه حانث کیږی - لیکن که په قسم کښې ئې دا نیت کړے ؤ - چه ډ دے نه څه رغیږی هغه به نه خورم - نو په پوډئ وغیره به حانث شی او په کچه چیچلو سره نه حانث کیږی - نه په اول صورت کښې او نه په دویم کښې - دارنګ که دغه غنم ئې وکرل - ډ هغې نه نور پیدا شو - نو وس دا هر څنګه چه خوری - نه حانث کیږی -

مسئله[3] :- که قسم ئې وکه چه میوه به ونه خورم - نو په دغه عرف کښې چه کومې ته میوه ویلې شی - خاص ډ هغې په خوړلو به حانث کیږی -

دارنګ که چا قسم وکه چه غوښه به ونه خورم - نو کومې ته چه په دغه عرف کښې غوښه ویلې شی - مراد به خاص دغه وی - او که کچه غوښه ئې وخوړه په دې نه حانث کیږی - ځکه چه کچه څوک داسې نه خوری -

مسئله[4] :- که قسم ئې وکه چه دا وړه به نه خورم - نو که ډ هغې پوډئ ئې اوخوړه - یا حلوا انوب وغیره نو حانث شه - او که کچه وړه ئې دغه شان وچکل - په دې نه حانث کیږی -

مسئله[5] :- که قسم ئې وکه چه ددې کوزې نه به اوبه ونه سکم - بیائې ددغه کوزې اوبه بلې کوزې ته واړولې - ډ هغې نه ئې وسکې - نو نه حانث کیږی - او که قسم ئې وکه چه ددې کوزې اوبه به اونه سکم - بیائې ډ دې اوبه بلې ته واړولې - ډ هغې نه ئې وسکې - نو حانث شه -

| ډ خبرو نه کولو قسم |
|---|

که[6] چا قسم وکه - چه ډ فلانی سره به خبره ونه کړم - بیا هغه اوده و - ده ورته آواز وکه - هغه پې راویښ شه - نو دے حانث شه - او که راویخ پې

---

[1] شرح التنویر ۱۲ [2] درمختار وشامی ۱۲ [3] شرح التنویر ورد المحتار ۱۲
[4] درمختار ۱۲ [5] فتح القدیر ۱۲ [6] درمختار ورد المحتار ۱۲

پے نشه ـ نو غوره قول دا دے چه نه حانث کیږی ـ اوکه هغه ویخ وُ ـ او ده ورته آواز وکړه ـ خو ویرلرے وُ ـ ده نه آوریدو په ځائے کښں ـ لیس وائے نه وریں ـ نو په دے سره هم نه حانث کیږی ـ

مسئله[۱] :ـ که چا ته ئے درے ځله اووے چه قسم دے تا سره به خبره ونه کم نو دوه ځله حانث شه ـ ځکه چه دا هم یوه خبره ده ـ نو په دویم ځل چه ئے اووے اول قسم پے مات شه ـ دویم قسم شه ـ بیا چه په دریم ځل ئے اووے ـ دویم قسم پے مات شه ـ او دریم قسم شه ـ نو که بیائے ورسره خبره وکړه ـ په دریم ځل به هم حانث شی ـ امام محمد صاحب رح په ورکوټی الی کښں دَ امام اعظم صاحبؒ نه دَدے مسئلے تپوس کړے وُ ـ او په عجیبه طرز سره ئے پیش کړے وُ ـ

مسئله[۲] :ـ که قسم ئے وکه چه بے دَ فلانی دَ اذن نه به دَ زید سره خبره ونه کم ـ بیا دغه فلانے مړ شه ـ نو قسم او غورزید ـ وس به دے نه حانث کیږی ـ اوکه دغه فلانے ژوندے وُ ـ او ده له ئے اذن ورکه ـ خو ده ته نه وه معلومه چه اذن ئے داکړے ـ او زید سره ئے خبره وکړه ـ نو حانث شه ـ

مسئله[۳] :ـ که قسم ئے وکه چه دَدے واړوکی سره به خبرے ونه کم ـ بیا چه دغه ځوان شه ـ خبره ئے ورسره وکړه ـ نو هم حانث شه ـ دا رنګ که قسم ئے وکه چه دَدے ځوان سره به خبره ونکم ـ بیا چه دغه بوډا شه ـ خبره ئے ورسره وکړه ـ نو هم حانث شه ـ

مسئله[۴] :ـ که قسم ئے وکه چه دَ ده سره به یوه میاشت خبرے ونکم ـ نو کوم وقت چه ئے قسم او خوړے میاشت به دَ هغے نه شروع کیږی ـ اوکه چا قسم وکه چه زه به یوه میاشت نفل روژه نیسم ـ نو اختیار ئے خپل دے ـ هره مناسبه میاشت چه روژه نیسی ـ اوکه چا قسم وکه چه زه به دَ ده سره دا میاشت خبرے ونکم ـ نو دَ دغه میاشت څومره ښې ورځے چه پاتے وی ـ مراد به هغه وی ـ

| دَ قسم متفرق مسئلے |
|---|

که قسم ئے وکه چه زه به فلانے شے په بیعه وانه خلم ـ بیائے

---

[۱] در مختار ورد المختار ۱۲ [۲] هدایه و شرح التنویر ۱۲ [۳] در مختار او شامی په دے قسم مسئلو کښں نور تفصیل هم راوړیدے خو دا ځائے دَ تفصیل نه دے ۱۲ منه [۴] در مختار و شامی ۱۲ [۵] هدایه و در مختار ۱۲

بل چانه اووې - چه ترې مال په بیعه واخلي - او هغه وله واغستل - نو دے نه حانث
کیږی -

دارنګ که چا قسم وکه چه زه به دا شے خرڅ نه کړم - بیا ئے بل چانه اووے - هغه
وله خرڅ که - نو دے به نه حانث کیږی - دارنګ حکم د اجاره وغیره نورو معاملو
هم دے - که چا قسم وکه چه زه به دا دکان په کرایه وانخلم یا ور به ئے نه کړم - بیا ئے دبل په
ذریعه واخست یا ئے ورکه - نو ده قسم نه دے مات - لیکن د قسم خوړلو په وخت کښ ئے
که دا نیت ؤ - چه نه به د ابیعه یا اجاره وغیره په خپله وکړم - نه د بل په ذریعه - نو په مذکوره
صورتو نو کښ به ئے قسم مات شی - کفاره به ورکوی - دارنګه که دا قسم خوړونکے یو امیر
شریف ؤ - چه په خپله به ئے کاروبار معاملے نه کولے - بلکه وکیل به وله کار کاوه - نو د ده
قسم هم په مذکوره صورتو نو کښ مات دے - کفاره به ورکوی -

مسئله :- که قسم ئے وکه چه په دے درے به قدم نه ملم - بیا ئے اوغوړوله
دپاسه ئے په څادر او غوړلوئ - په هغے څملاؤ ست - نو حانث شه - او که دغه درے ئ د
پاسه ئے بله درے اوغوړوله - په هغے څملاسته - په دے نه حانث کیږی -

او که چا قسم وکه چه په زمکه به کیننم نو په زمکه ئے درئ اوغوړوله - یا انړیئ
وغیره - او په هغے کیناست په دے نه حانث کیږی - او که څادرے په سر وو - د هغے
پیڅکے ئے په زمکه واچوله - په هغے کیناست نو حانث شه - هاں که څادرے
د ځانه بالکل لرے که - او کیناست پے - نو په دے نه حانث کیږی -

او که چا قسم وکه چه په دے کټ به کیننم - بیا ئے په هغے کښ درے وغیره اوغوړه[1]
او په هغے کیناست نو حانث شه - او که د کټ دپاسه ئے کټ واچاؤ - او په هغے
کیناست - نو نه حانث کیږی -

مسئله :- په بے وقوفئ سره ئے قسم وکه - چه روژه به نه کړم - بیا ئے نیت
د روژے وکه - وئے نیوه - نو حانث شه - اګر که په دغه ورځے روژه ماته کړه - پوره
ئے نکړه - حانث شوے دے - کفاره به ورکوی - هاں که قسم ئے داسے کړے ؤ - چه
یوه ورځ به هم روژه ونه نیسم - نو که د یوے ورځے روژه ئے پوره کړه - هله به
حانث کیږی - او که چا قسم اوکه چه په مانځه به ونه دریګم - بیا با قاعده و دریده
دمانځه نیت ئے وتاړه - قراءت ئے وکه - رکوع ئے وکړه - نو وس لا نه دے حانث -

---

[1] هدایه و در مختار ۱۲ شه هدایه و در مختار ۱۲

هاں که سجده ئے ور سره هم وکړه۔ نو قسم ئے مات شه۔ دس که دے نه پس ئے دغه مونځ مات کړ۔ هم به کفاره ورکوی۔ او که چا قسم وکړ چه زه به یو مونځ هم ونکړم نو که دوه رکعته ئے وکړه سره د قعدے نو حانث شه۔ کنی نو نه۔ خو دا خبره یاد مسائل ضروری دی۔ چه د عبادت نه کولو قسم د ګناه خبره ده۔ چرته دے دا رنګ قسم نه کوی۔ او که د کم عقلئ په وجه ئے وکړه۔ مات دے کی۔ کفاره دے ورکی۔

**مسئله**[1]:۔ که قسم ئے وکړ چه زین به چرے ونه لبوم۔ بیائے لیس د سرګی نه ولبا و۔ هم حانث شه۔

**مسئله**:۔ که بکر قسم وکړ چه نن به زید وژنم۔ حال دا و چه زید مړه و۔ نو که بکرته د قسم خوړلو په وقت کښی معلوم وه۔ چه دغه مړه دے۔ نو حانث دے۔ کفاره به ورکوی۔ کنی نو نه۔

**مسئله**:۔ که خاوند ښځے ته په قسم سره او وے چه تا به چرے ونه وهم بیائے د کوڅو نه راښکوده۔ یا ئے په ویښتو غلی شه۔ یا ئے وچیچله۔ نو حانث شه۔ خو په دغه اتفاق کښی نه۔

**نذر بیان** | که[2] چا په ځان یو نیک کار اوماته۔ یعنی لازم ئے که په یو شرط سره یا بے شرطه۔ او دغه کار د دے قسمه و۔ چه د هغے د جنس نه په شریعت کښی فرض یا واجب مقصودی۔ عبادت موجود و۔ لکه مونځ۔ روژه۔ صدقه وغیره۔ نو دغه نیک کار په سړی باندے لازمیږی۔ که شرط ئے لګولے وی۔ نو بس د موجودیدو د شرط نه پس لازم دے۔ او که شرط ئے نه وی لګولے۔ نو همیشه په لازم شه۔ نو که چا نذر اوماته چه ځما فلانے کار که وشه۔ لس روپئ به خیراتی ورکم۔ نو که دغه کار ونه شه۔ لازم پے نه دی۔ او که وشه۔ لازم دی چه لس روپئ خیراتی ورکی۔ او که شرط ئے نه و ذکر کړے۔ همیشه ئے منلی وی۔ هم به ورکوی۔ که نذر ئے پوره نه که۔ نو ګناه دے۔

او که چا په ځان باندے یو داسے شے لازم که۔ چه د هغه د جنسه فرض یا واجب عبادت مقصود نه و۔ لکه عیادت د مریض۔ یا د جنازے سره تله۔ یا پل وغیره دغول۔ یا د دے په مثل نور۔ نو دا نه لازمیږی نذر نه دے۔

**مسئله**[3]:۔ نذر ئے اوماته چه ځما فلانے کار که وشه۔ نو لس روژے را باندے

---

[1] شرح التنویر ۱۲ [2] در مختار و شامی ۱۲ [3] در مختار و شامی ۱۲ [4] عالمګیری ۱۲

لازم دی - بیائے هغه کار وشه نو روژے یے لس لازم شوے - خو بنه ئے خپله ده - یے دریے
نیسی - او که په میشتُ میشتُ کښی پریدی - لیکن که په نذر کښی ئے نیت دَ یے دریے کړے وُ -
نو پوره لسے به نیسی - که په میشتُ کښی ئے یوه پریخوده - بیا به دَ سره لس پوره کوی
پوره لسے -

مسئله :- که نذر ئے اومانه چه دَ دے زیارت دَ ورزے روژه یه مالازم ده - یائے
دَ یو میئے غور دَ اولونیمُو ورزو اووے مثلاً - نو خاص دَ زیارت دَ ورزے روژه یے نه ده
واجب - که بله ورزے ونیوه - هم نذر پوره شه - دارنګ خاص دَ دپه میئ خور اولے
پنځه یے نه دی واجب - که دَ هغے په ځائے ئے نورے پنځه ونیوے یے دریے نو هم
نذر پوره شه -

مسئله :- که نذر ئے اومانه چه زه به دالس روپئے دَ دارو اختر په ورځ په
پوښیر کښی زید فقیرله ورکوم - بیا ئے دَ هغے په ځائے نورے لس روپئے دَ لوئے اختر
په ورځ په سوات کښی عمر فقیرله ورکړه - نو هم ئے نذر ادا شه -

مطلب دا دے چه دَ روپو او دَ ورزے او دَ مکان او دَ فقیر تخصیص ضروری
نه دے - بلکه نذر پوره کول ضروری دی -

دارنګ که چا نذر اومانه - چه حافظان طالبان به ډوډئ له راولم - بیائے نور مسکینان
راوستل نو هم نذر ادا شه -

دارنګ که چا نذر اومانه چه دا پنځه روپئ به پنځو مسکینانو له ورکوم - بیائے دغه
روپئے یا نورے پنځه یو مسکین له ورکړے - یائے په شپږو اوویشلے - نو هم ئے نذر
پوره شه -

مسئله :- که نذر ئے وکه - چه دَ لسو روپو ډوډئ به په فقیرانو ویشم -
نو خو بنه ئے خپله ده - که دَ لسو روپو ډوډئ په فقیرانو ویشی - او که فقیرانو له
لس روپئے ورکوی - او که دَ دے قیمت بله شئ آخلی او فقیرانو له ئے ورکوی -

مسئله :- که نذر ئے اومانه دَ زیات او دے مالک وُ دَ کم - نو دَ څومره چه مالک
دے هغه یے لازم دے - زیات یے لازم نه دے - مثلاً نذر ئے وکه - چه پنځوس
روپئے به خیراتی ورکوم - او اوس ورسره صرف لس روپئے وے - نو ئے

---

له شرح التنویر ۱۲ له شرح التنویر ۱۲ له عالمگیری ۱۲ له درمختار وهندیه ۱۲ له هندیه و
شرح التنویر ۱۲

هیڅ نه وي. نو صرف لس به لازم دي. او که څه سامان اسباب یې هم وي. مثلاً کمبله د شلو روپو (مثلاً) او لس ورته روپۍ وي. نو دیرش به لازم دي. بس.

مسئله:- د قربانۍ په ورځ د کښې یو غني سړي وویل. اضحیه یې په ځان نذر کړه. نو اضحیې به دوه راغلې. یوه د نذر. او بله هغه یوه چه همیشه به واجب ده. لیکن که په دې وینا سره د ده نیت صرف د واجب اضحیې کولو خبر ورکول وي. د نوې اضحیې نذر نه وي. نو صرف یوه ده بس.

مسئله:- که چا نذر او مانه. مثلاً چه زه به نن د ماسپښین څلور فرض کوم. نو دا نذر نه دې. داخو به همیشه فرض وي.

مسئله:- که نذر یې او مانه چه ځما فلانی کار که اوشه. څلور رکعته نفل به کوم. نو که کار یې وشه لازم دي چه. او که د یو رکعت نذر یې و مانه. یا د نیم رکعت نو دوه رکعته به کوي با قاعده. او که د دریو نذر یې و مانه څلور به کوي. او که د پنځو نو شپږ. دا رنګ د بره پورې. یعنې جفت جفت.

مسئله:- که نذر یې و مانه چه ځما فلانی کار که وشه. نو په فلانی جمات کښې به څلور نفل کوم. نو که کار یې وشه. بیا یې بل ځای هغه څلور رکعته وکړه. هم یې نذر پوره شه.

مسئله:- که چا نذر او مانه چه ځه به د هوانځه نه لیږي سل ځله تسبیح وایم نو عالمان وائي چه دا نذر صحیح نه دې. او که نذر یې او مانه چه د هوانځه نه لسي به دومره داره درود شریف لولم. دا صحیح دې.

مسئله:- په نذر معلق کښې چه یې کوم شرط ایښې دې. که د هغې موجودېدل یې مطلب وي. مثلاً نذر یې ومنلو. چه زه که د دې مرض نه جوړ شوم خیرات به وکړم. نو په دې صورت کښې که دې د مرضه جوړ شه. خیرات به واجب دې.

او که شرط داسې ایښې وي. چه د هغې نه موجودېده غرض وي. مثلاً نذر یې ومنلو. چه که ما چرې دروغ او وې نو پنځوس روپۍ را باندې لازم دي. نو په دې صورت کښې که شرط موجود شه. یعنې خدا نخواسته ده دروغ او وې. وس د ده خوښه ده. که پنځوس روپۍ خیرات ورکړي. او که کفاره د قسم ورکوي.

---

۱ هدایه وشامی ۱۲ ۲ درود ۱۲ ۳ عالمګیری ۱۲ ۴ شرح التنویر ۱۲ ۵ بحر رائق و در ۱۲ ۶ عالمګیری درمختار

**مسئله**:- نذر صرف دَ خدائ پاک دپاره وی - دَ بل چا دَ پاره نه وی - نو که دَ خدائ پاک نه سوا دبل چا دَ پاره ئے نذر اومانه - مثلاً وے ویل - چه یا پیره بابا[رح] ستا دَ پاره مِ نذر منلے چه حَما که خوئ وشه - ستا دَ پاره به دا کار کوم - یا چوسنه درځم - یا پیسه درځم - نو دا نذر باطل او حرام دے - بلکه شرک دے - هاں که نذر ئے دَ خدائ پاک دپاره اومانه - چه یا خدایه پاکه ستا دپاره مِ نذر منلے - که حُما خوئ وشه - نو دَ پیر بابا صاحب[رح] دَ مزارِ اقدس په مجاورینو به دوه تولے سره تقسیموم - (مثلاً) نو دا نذر صحیح دے - خو دومره خبره ده - چه خوئ که ئے وشه - او بیا ئے دوه تولے سره په نورو فقیرانو تقسیم کړه - هم ئے نذر اداکیږی -

دا رنګ که چا نذر اومانه چه یا خدایه ستا نذر مِ منلے - که حُما فلانے کار وشه یو سل روپئ به ستا په نامه خیرات ورکم - او ثواب به ئے دَ پیر بابا صاحب رح روح مبارک ته اوبخښم - نو دا نذر هم صحیح دے -

**تنبیه**:- دَ نذر بعضے مسئلے په کتاب الصوم کښِ دنذر دَ روژے په بیان کښِ هم تیر شوی دی -

---

له در مختار و رد المحتار ۱۲

# کتاب الحدود

دحد مسئلې

**مسئله**[۱] :- که چا زنا وکړه - او با قاعده ثبوت وشه - نو که محصن وی - رجم دے کړے شی - یعنے یو میدان ته دے او باسی - په کټو دے او ولی - تر دے پورے چه مړ شی - او که غیر محصن وی - نو حد ئے سل دُرې دی - او په دے مسئله کښې دَ محصن نه مراد دا دے چه آزاد وی - او عاقل بالغ مسلمان - او په نکاح صحیح سره ئے صحبت کړے وی - په دا سے حال کښې چه په ښځه خاوند دواړو کښې دَ محصنوالی صفات موجود وی -

**مسئله**[۲] :- که مریض زنا وکړه - او حد ئے رجم وُ - رجم به کړے شی - او که حد ئے دُرې وے - نو وس نه بلکه چه جوړ شی - هله به یے لګی - او که حامله ښځے زنا وکړه نو هله به رجم کیږی - چه بچے ئے وشی - او که حد ئے دُرې وی - نو هله به یے لګی چه وُزی دنفاس نه -

**مسئله**[۳] :- که چا لواطت وکه - نو هغه له تعزیر دے - دَ امام صاحب[۴] په نزد - که دیوال یے نړوی - او که دَ اوچت ځائے نه ئے را غورزوی - او که سری کو نه ئے زورېدنه وی - او که غوټکی یے راوړوی - او که په اور ئے سیزی - او که په دُرهو ئے وهی - او که نور څه مناسب سزا ورکوی - او قید دے کی - تر دے پورے چه مړ شی - یا توبه او باسی - او که عادت ئے دَ لواطت وُ - نو دَ هغه دَ پاره قتل دے سیاستهٗ -

**مسئله**[۵] :- دَ شرابو او دَ نشکر حد دَ آزاد دَ پاره اتیا دُرې دے - او دَ حریٔ دَ پاره څلویښت -

**مسئله**[۶] :- محصن سړے وُ - یا محصنه ښځه - ذیب ورته صریح دَ زنا کنزل وکړه نو هغه دَ قاضی په مجلس دعوه وکړه - چه دے ذیب ماته دَ زنا کنزل کړی دی - په دروغو ئے ماته دَ زنا نسبت کړے - په ده دے حد دَ کنزلو ولګی - او ثابته شوه چه واقعی ذیب ورته دا کنزل کړی وو - نو په ذیب به اتیا دُرې لګی - او دے ته حد دَ قذف ویلے شی - او که ذیب

---

[۱] در مختار و رد المختار ۱۲ [۲] هدایه ۱۲ [۳] در مختار و شامی ۱۲ [۴] یعنے دانسان سره ئے بدکاری دَ کونړ دَ لوری پورې په لاندې دواړو له تعزیر دے ۱۲ منه [۵] مجمع الانهر ۱۲ [۶] شرح التنویر و هدایه ۱۲

مړه ئې وي. نو درې به خلو ئیښت لګي. به هر حال چه په زینا دا دُره لګیدلې. دَ دې نه پس ئې شاهدي هیچرې نه قبلیږي. ترڅو که بیا توبه اوباسي. او په دې مسئله کښې دَ محصن نه مراد دا دے چه دا کوم چې شوے انسان آزاد عاقل بالغ مسلمان ري او پاک وي دَ زنانه.

مسئله :- که چا بله ته اووے. یا زناکاره. پس نفقه اووے چه نه بلکه ته نو په دے دواړو به حد لګي. که هغه یو مطالبه کوله.

مسئله :- که چا بل ته اووے چه یه حرامي. یا ته دَ فلان پلار نه ئې. یا ئې دَ هغه دَ پلار نوم واخستو چه ته دَ فلاني ځوئے نه ئې. او حال دا وُ چه دَ هغه مور محصنه وه. نو حد دَ قذف به لګي.

مسئله :- که چا مسلمان ته اووے چه یا فاسقه. یا یه کافره. یا یه خبیثه یا یه غله. نو ویونکي له تعزیر دے. او که وئے وے چه یه خره. یه خنزیره. نو تعزیر پرې ورله نشته. لیکن غوره قول دا دے چه دا کوم چې شوے که شریف وُ. لکه سیّد. عالم وغیره. نو ویونکي له تعزیر شسته. ځکه چه دي ته په دے کنزلو سره صدمه رسیږي. او که عامي وُ. نو تعزیر نشته.

مسئله :- که عاقل بالغ کم نه کم لس شرعي درهمه غلا کړه یا یو داسې شے چه دَ هغې قیمت کم نه کم دومره وُ. او غلا ئې دا سې ځائے نه وکړه. چه هغه بې شکه ځائے دَ حفاظت وُ. نو حد ئې دا دے چه دَ هغه لاس پرې کړے شي. خو ځینې څیزونه داسې هم شسته چه په هغې کښې پې حد نه جاري کیږي. لکه یئې غو ښه میوے. قرآن شریف. مرغه. ماشے. تنبل او دامه وغیره. لیکن دا ځائے دَ تفصیل نه دے.

دمرتد حکم | خدائے تعالیٰ دِ نه کي. که مسلمان سړے مرتد شه. یعني اِسلام ئې پرېښود. کافر شه. نو حکم دا دے چه قیصا دے کړے شي. او اسلام دے ورته پیش کړي. درې ورځې وله مهلت شسته. که څه شبهه ورته پیښه شوې وه. هغه دے وله لرې کړي. نو که کلمه دَ شهادت ئې اووے. او دَ کفر نه ئې توبه وایسته نو پریږه ښه. کني نو قتل دے کې. او که خدا نخواسته ښځه مرتده شوه نو دَ هغې دپاره قتل نشته. خو قیده به وي. تر هغې پورې چه اسلام راوړي. او کوم وخت چه ئې کلمه دَ کفر قصداً اووے. ښځه وي او که نر. ایمان ئې لاړ. او عبادتو نه چه ئې

---

ے درمختار ۱۲ ؎ ھدایه ودرمختار ۱۲ ؎ ھدایه ۱۲ ؎ ھدایه ۱۲ ؎ مجمع الانھر ودرمختار ۱۲

څه کړي وي. هغه ټول ضایع شو. نکاح یې مات شه. او که حج یې کړے وي. هغه هم لاړ. نو
که وس یې توبه وېستنه. نکاح دې بیا وکي. او که وس ور څخه دومره مال وي چه حج پې فرض
کیده. نو حج به هم بیا کوي.

**مسئله:** که ښځه مسلمانه وه. خاوند یې مرتد شه. نو نکاح یې فی الحال مات
شه. پس که بیا یې اسلام راوړ نو باقاعده نوے نکاح به تړي. او که خاوند مسلمان
و ښځه یې مرتده شوه. نو د بلخ عالمان صاحبان وائي. چه په دے سره نکاح نه
ماتیږي. او د نوي نکاح تړلو حکم به نه کیږي. ځکه چه دا حکم که جاري کړے
شه. نو ګویا د فتنو دروازه بېرته شوه. د کومے ښځے چه خپل خاوند نه وي خوښ. په
دے طریقه به ځان د هغه د نکاح نه ایستل غواړي. نو ډیر وائي چه د ښځے په مرتد
کیدو نکاح نه ماتیږي. بلکه یو څو ورځے به قید کړے شي. تر دے پورے چه اسلام
راوړي. او د سمرقند عالمانو هم په دے فتوی ورکړے. او نورو بعضو عالمانو او د بخارا
په عالمانو کښې اسماعیل زاهد هم دا خبره غوره کړے. او د بخارا عام عالمان وائي
چه د ښځے په مرتد کیدو هم نکاح ماتیږي. خو دوئ وائي چه پس د اسلام راوړلو نه
به په هغے جبر کیږي. چه نکاح به خاص د دے خاوند سره کوي.

**مسئله:** که چا ځنه اراده وکړه. چه زه به څه موده پس مثلاً دوه کاله پس
کافر کیږم. نو دے وس کافر دے. او که کافر ځنه اراده وکړه چه زه به دوه کاله پس
مسلمانیږم. نو س نه دے مسلمان. چه شي هله به شي.

**مسئله:** که چا په خپله اختیار سره یوه داسے خبره وکړه چه په هغے سړے کافر
کیږي. اګر که په خوشه او په خندا یې ویلي وي. هم کافر شه. عالمانو مسلمان سړي
ته د کفر په نسبت کښې ډیر د احتیاط نه کار اخستے. لیکن بیا هم بعضے خبرے داسے دي
چه عالمان وائي. په هغے سره سړے کافر کیږي. دا ځاے د نمونے په طور د هغے نه یو
څو مثاله لیکلے شي. دپاره د دے چه مسلمان بنده په کماله طریقه د دے قسم خبرو نه
ځان وساتي.

(۱) ښځے خاوند ته اووے. نه څه خدا یې چه د ذره په حال پو هیږے. هغه
جواب ورکه دوه زه خدا یې یم نو کافر شه.

(۲) چا اووے. اے خدایه دومره قدرت نشته چه دا کار د کي؟ ده ورته اووے چه

[1] خلاصة الفتاوی ۱۲ [2] خلاصة الفتاوی ۱۲ [3] خلاصه هندیه ۱۲ [4] په دے مسئله کښې ډیر تفصیل هم شته منه

وو نښتته - نو دے کافر شه -

(۳) چاگناه کاؤ - بل ورته اووے - ته د خدایه نه یریږې ؟ ده جواب ورکه - چه ؤنه یریږم نو دے کافر شه -

(۴) که ؐچا اووے - ما دا سے کار کړے چه خدائے تعالیٰ تے هم نه دے خبر - یا چا اووے - چه خدائے تعالیٰ که راته اووے چه وے که - هم به ئے ونکم - یا چا اووے - چه جبرئیل که را نازل شه - او شاهدی ئے کوله - هم به ئے ؤنه منم - یا د کافرخه کارئے خوښ شه نو ئے وے چه زه هم کافر وے په دا سے وے - یائے ځوئی مړ شه - نو وئے ویل چه په خدا یه ! په ما دے دا ظلم وے وکه - دا ټول خبرے دکفر دی - د مسلمانئے ته پے ادځی - او که د خدائے پاک یا د رسول صلعم تحقیرئے وکه - یا د دین اهانت - نو دا کفر دے - اَعَاذَنَا اللّٰهُ مِنْهُ

مسئله :- که د مسلمان په زړه کښې دا سے خبره تیره ثنوه - چه هغه که ده په ژبه ویلے وے - دے به پے کافر شوے ؤ - او ده ته بده ښکاریداه - ژبه ئے پے نه شوه خوزه وے - نو په دے کافر کیږی نه - بلکه دا ښه ایمان دے -

لقطے بیان

مسئله :- که څه شے د بل نه غورزیدے ؤ - او ده ؤ او موندهه - او ده ته په ځان یقین ؤ - چه زه به ئے مالک ته د رسوم - یا د هغه په تلاش کښې به پوره کوشش وکم نو غوره داده چه دغه شے اوچت کی - او که اوچت ئے نه که - گناه یکښې نشته لیکن که غالبا گمان ئے داؤ - چه د بل لاس له که ورغے ځان له به ئے واخلی - مالک ته به ئے ونه رسوی - نو را خستل ئے واجب دی - خو د ځان د پاره نه - بلکه د پاره د مالک - او دے ته لقط ویلے شی - د لقطے حکم دادے چه د هغے اعلان ضروری دے - په هغه ځائے کښې او د هغے خوا وُشا ته - او په گنړه گوره کښې - یعنے په مناسب ځائے دے اعلان کوی - او ښه دے مشهوره کی - چه ما څه شے موندلے وے - که د چا وی وا دے خلی - خو پوره پوره حال دے نه وائی چه فلانے شے دے - دا سے نه چه څوک په دروغه اووائی چه ځما دے - نو که څوک راغے - او د هغے نخے ئے برابر برابر بیان کړے - یا دده یقین وا خسته - چه دے ریښتیا وائی - نو هغه لرئے ورکولے شی او د هغه نه ضمانت هم اخیستے شی -

او که مدعی شاهدان وړدل چه دا ځما دے - بیا به ورله جبراً ورکوی او په ضمانت او که کافی ورزے ئے اِعلانونه وکړه - خو څوک طالب را پیدا نه شه - او دده ځمه قطعو

له هنديه ۱۲ ؎ درود ۱۲ ؎ خلاصة الفتاوی ۱۲ ؎ درمختار و در المنتقی ۱۲

شوه چه وس څوک دده طلب کونکے نه راځي - یا دغه شے دخوراک وُ - لکه غذا - میوے وغیره - او دَدے نه پس ئے دَخرابیدو غالب گمان وُ - نو دغه شے دے چاله خیراتي ورکي ځان نه دے نه پریږدي - اوکه خپل فقیر نسبي لره ئے خیراتي ورکه هم خیر دے اوکه دے په خپله غریب وي - نو په خپل کاروے ئے هم راوستے شي - ددے نه پس که چرته ددغه شي مالک راپیدا شه - نو که دغه په دغه خیراتي ورکولو راضي وُ په دیره ښه ده - ثواب ئے وشه - اوکه نه وُ راضي - بلکه مطالبه ئے کوله نو دے به وله دَ هغے قیمت ورکي - او ده چه خیراتي ورکړے وُ - هغه ثواب دده وشه -

**لطیفه** :- یو سړي په لاره کښې څه شے موندلے وُ - خیال ئے وکه - چه اعلان ئے ضروري دي - که دَ خلقو په مخکښې اعلان کوم - داسے نه چه مالک ئے ښکاره شي - نو دښاره اووت - هلته یو کوهے وُ - چا پیره ئے اوکتل چه څوک نشته - نو سر ئے کوهي ته ورښکته که - او په زوره ئے اووے - خلقه واورئ ما څه شے موندلے دے - که دَچا وي وادِ خلي اتفاقاً ددغه شي مالک هم هلته موجود وُ نو وائے وریدل -

صاحبِ کتاب وائي چه دا اعلان نه دے - بلکه په عام مجمع کښې او په شهرت سره دَ یُل ضروري دي - یعنے ښکاره په ښکاره - اوکه لقطه موندونکے نابالغ وُ - نو په ولي ئے اعلان واجب دے -

**مسئله** [1] :- که ساتلے باز وغیره یا ساتلے مرغئ لکه طوطي مارو وغیره ئے چرته اوموندله - او وئے نیوه - او معلومیده چه دَدے طالب پالونکے به څوک وي نو که په ښار کښې وي - اوکه په بانډه کښې دَ هغے اعلان هم واجب دے - او دا تقلک حکم دے دَ ساتلے هوسیئ وغیره -

**مسئله** [3] :- که په باغ کښې دَونے نه میوه راغورزیدلے پرته وه - نو بے اجازته دَ هغے اوچتول او خوړل ئے حرام دي - لیکن که میوه دَدے قسمه وه - چه دَ هغے چا پتوس نه کاوه - مالک ئے بده نه گڼړل - نو خیر دے خوړلے شي -

**مسئله** [4] :- که زید پردے حق په ذمه آخستے وُ - بیا هغه ارهوشه - او زید دَ هغه وارثانو له هغه حق ورکه - نو دغه ذمه خوئے خلاصه شوه - لیکن په میت چه ئے ظلم کړے وُ - دَ هغے دَپاره دے دَ میت په حق کښې دعا دخیر کوي - او توبه او استغفار دے کوي

---

لہ شامی ۱۲ سے عالمگیری ۱۲ سے هندیه ۱۲ سے درمختار ورد المحتار ۱۲

او که په زید باندے چرته پخوانئ قرضه وه - او مقرار مړشه - او میراث خورئ هیڅوک پاتے نه شه - یا ده نه پیژندو - او بالکل نا امیده شه - نو دے ده ذخپل مال نه ذ هغه حقدار ذ جانبه صدقه ورکی - ذده نه به ذ هغې مطالبهٔ اُخروی او غورزیږی - ذمه به ئې د دغه قرضے نه خلاصیږی -

| دمفقودبیان | که[1] زید مفقود ذ (یعنے ورک شُو) هیڅ ځائے ئې نه معلومیږی - هیڅ پته ئې نه لګیږی چه مړ دے که ژوندے - نو قاضی به ذ هغه ذ طرفه څوک سړے مقرر کی - چه ذ هغه ذ مال حفاظت کوی - او ذ هغه ذکاروبار انتظام - لیکن اختیارات به ئې محدود وی - ډیر به وسیع نه وی - او قاضی به ذ زید ښځے او بچوله ذ زید ذ مال نه نفقه ورکوی - او کوم مال چه خرابیدونکے نه وی - هغه به خرڅوی نه - بلکه محفوظ به وساتلے شی - نو هر کله چه زید ذ موره پیدا شوی ؤ - ذ هغه وخت نه رابیسته که اتیالس (۹۰) کاله پوره شو - او په دے میعاد کښی څه پته ونه لګیده - قاضی به بیا د مرګ حکم ولګوی - نو مال به ئې په میراث خورو تقسیم کړے شی - کوم میراث خوارہ چه او س موجود وی -

**مسئله[2]** :- که زید مفقود ؤ - او ذ مفقود والی په زمانه کښی ئې څوک نسبی مړشه چه ذ میراث حق ئې ورله ؤ - مثلاً بکر مړشه - او میراث ئې زید ته پاتے کیږی - نو ذ زید حصه به امانته محفوظه وساتله شی - که زید راپیدا شو هغه به ئې واخلی - او که راپیدا نه شه - نو ذ زید ذ کید ونه پس چه اتیالس (۹۰) کاله پوره شی - قاضی به په زید باندے ذ مرګ حکم ولګوی - پس ذ بکر میراث چه ورله محفوظه ساتلے شوے وه هغه به ذ بکر میراث خورو له ورکړے شی - کوم چه ذ بکر ذ مرګ په وقت کښی موجود ؤ

**مسئله[3]** :- ذ امام صاحبؒ په نزد د مفقود ښځه بل خاوند نه شی کولے - هاں! که ذ دغه مفقود ذ پیدائش نه ذ دے وقته پورے اتیالس (۹۰) کاله پوره شوی ؤ - او قاضی پے ذ مرګ حکم ولګاؤ - بیا که ښځه ئې خاوند کوی کولے شی - خو دے قاضی د دغه حکم نه پس به څلور میاشتے لس ورزے عدت ذ وفات تیره وی - هله به کوی - او امام مالک صاحبؒ ذ مفقود ذ ښځے په بابت کښی قوله موده څلور کاله خوښ دے - هغه وائی چه پس ذ رپوټ نه که څلور[4] کاله تیر شو - او په هغے کښی ئې ذ مرګ ژوند هیڅ پته ونه لګیده - نو وس به پے ذ ښځے په حق کښی ذ مرګ حکم ولګی - ذ دے نه پس به ښځه عدت ذ وفات

[1] هدایه ۱۲ [2] درمختار و رد المحتار و بحرالرائق ۱۲ [3] درالمختار و درالمنتقی و شامی ۱۲ [4] الحیلة الناجزة ۱۲

تیرکی۔ بیا بل خاوند کولے شی۔ او څونږ بعضے عالمانو دَضرورت په وجه دَ امام مالک صاحب په قول هم فتویٰ ورکړے ده

دوقف بیان | خپل جائداد۔ زمکه۔ باغ وغیره دَ خدائے پاک په لارے کښ په فقیرانو مسکینانو غریبانو وقف کول چه دَ دے آمدنی په هغوئ صرف کیږی۔ ډیر دَ ثواب خبره ده۔ وقف کونکے اګرکه مړ شه۔ دکوم پورے چه دغه شے باقی وی۔ اوغریبانانوته ترے فایده رسی۔ ده ته به ثواب ملاویږی۔

**مسئله**:۔ کوم شے چه باقاعده وقف شوے وی۔ هغه دَ چا مملوک نه دے۔ نه ئے خرڅولے شی۔ نه ئے هبه کولے شی۔ او نه میراث کیږی۔ بلکه دکوم غرض دپاره چه وقف شوے وی۔ هغه به ترے آخستے کیږی۔

**مسئله**:۔ دوقف متولی داسے سړے پکار دے۔ چه امین وی او قابل وی۔ دَ تولیت۔ اوکه متولی خائن وی۔ نو معزول دے کړے شی۔ دَ هغه په ځائے دے بوسم سړے ودرولے شی۔ خائن متولی کرځول دَ ګناه خبره ده۔

**مسئله**:۔ که مثلاً سړی زمکه وقف کړه۔ او په وقف کښ ئے دا شرط ولګاؤ چه دَ دے غلے نه به دومره حصه زه اخلم۔ یا څوله۔ او ځما نه پس به په فلانی نیک کار کښ صرف کیږی نو دا هم جائز دی۔ اوکه دا شرطئے ولګاؤ۔ چه اول به ئے دَ غلے نه دومره حصه ځما او لادله ورکیږی۔ یا څوله۔ او پس دَ هغوئ نه فقیرانو غریبانانو له۔ نو دا هم جائزدی په نزد دَ امام ابویوسف صاحبؒ او دا قول مفتیٰ به دے۔

**مسئله**:۔ که دَ جمات څه شے زیاتی شه۔ نو دا نه چه وُس ئے سړے ځان له کورته وړے شی۔ بلکه لګی به په جمات کښ وُس یا پس۔ او که نه لګیده۔ نو خرڅ دے کړے شی۔ او قیمت دے په جمات کښ ولګوی۔

**مسئله**:۔ که جمات وران شه۔ بالکل شاړ او جاړ شه۔ نو وس هم جمات دے۔ بلکه ترقیامته پورے به جُمات وی۔ او دَ امام محمدؒ صاحبؒ خلاف په کښ شته۔

---

له هندیه ودرد المختار ۱۲ ـ که اشباه ۱۲ ـ که شامی ۱۲ ـ که درمختار ودرد المختار ۱۲
ه درمختار وشامی ۱۲ ـ ه شامی وبحرالرائق ۱۲

# کتاب الصید والذبائح

**دښکار بیان**

د غیر محرم دپاره په غیر حرم کښې ښکار مباح دے۔ په څلور شرائطو سره[1]

**مسئله:۔** کوم حیوان چه په داړو ښکار کوی۔ یا په پنجو۔ او قابل د تعلیم وی۔ او نجس العین نه وی۔ په هغه سره ښکار جائز دے۔ نو په منږری سره نه دے جائز۔ ځکه چه دے قابل د تعلیم نه دے۔ د علو همت په وجه بل له ښکار نه کوی۔ او په خنزیر سره هم نه دے جائز۔ ځکه چه دے نجس العین دے۔ او سپے، باز، باښه وغیره چه معلّم وی۔ په هغې سره جائز دے۔ سپے هله معلّم ګڼړے شی چه کم نه کم مسلسل په درے موقعو کښې د ښکار نه څه و نه خوری۔

لیکن په بعضے کتابونو کښې ئے راوړی دی چه د درے پیرے څه قید نشته۔ که د ښکاری غالب ګمان ته ورسیده چه تعلیم ئے پوره شوے دے۔ وس به د ښکار نه څه نه خوری نو دا کافی ده۔ د امام صاحبؒ په نزد به معلّم ګڼړے شی۔ او د معلّم باز نخه داده۔ چه کوم وخت ئے ښکاری راغواړی۔ نو راشی۔ بس۔ نو معلّم سپے یا باز چه سړے په ښکار پسے پریږدی۔ او د پریښودو په وقت کښې بسم الله اووائی۔ یعنے بسم الله ویل قصداً ترک نه کی۔ او دا معلّم سیده په ښکار پسے لاړشی۔ حمله وکی۔ یعنے د ښکاری پریښودو نه پس بل څه منافی عمل ونه کی۔ او د دے معلّم سره په حمله کښې بل داسے حیوان نه وی ملګرے شوے۔ چه هغه غیر معلّم وی۔ یائے ښکار نه وی جائز۔ نو چه دا سپے یا باز ښکار زخمی کی۔ او ښکار د دے نه مړشه نو حلال دے۔ لیکن که سپی ترے خوړلے وُ۔ بیا حرام دے۔ او که بازو نو هغه ته اګرکه خوړلے وی حلال دے۔

بهرحال شرط دا دے چه ښکار که د نظر نه غائب وُ۔ نو دا ښکاری۔ یا د ده خادم وغیره د هغې د طلب نه ځان منع نه کی۔ بلکه ګرځی ورپسے۔ نو که ژوندے ئے اوموندلو

او ژوندون په کښې د منذبوحه حیوان د ژوندانه زیات پاتے وُ۔ نو ذبحه کول ئے واجب دی

[1] در مختار وشامی ۱۲

که قصداً ئے ذبحه نه که نو حرام دے . او دَ مذکوره طلب تعین بعضو نه دے کړے . او بعضے
والی چه دَ امام صاحبؒ نه روایت دَ نیمے ورزے دے . او بل روایت کم دَ نیمے ورزے نه .

**مسئله** :- باز وغیره له په ژوندی حیوان سره تعلیم ورکول مکروه دی .

**مسئله** :- که په بسم الله سره ئے غشے په ښکار پسے پریخود . دَ هغے نه زخمی
شه . چه دے ورسید نو مړ شوے وُ . نو خیر دے حلال دے . او دارنګ حکم دهر هغه
شی دے . چه تیره وی . او په دے وجه نفوذ کوی وینه بیوی .

| کوم حیوان حلال دے . او کوم حرام |
|---|

کوم حیوان چه ماتے کوی . په داړو یا په پنجو . هغه حرام
منزرے . شرمخ . یک . لیوَه . ګیدړ . شادو . سپے . پیشو . وغیره .
او باز . باخه . باتور . وغیره . او کوم حیوان چه په سلیم طبیعت کښی خبیث او قبیح
ګڼړے شی هغه او دارنګ حشرات الارض لکه منګنک . چرګلے . کوبړے . مار .
چنده . مچئ . مونګړ . سپکه . ورږه . وغیره . او دَ دے قسمو نو نه چه سوا وی . هغه
حلال دی . لکه وسئے . سوبڼه . ګړه . بیزه . غوا . میښه . نیل ګائے . کورخې . وغیره .
شینغاړے . کونتره . زرکه . تارو . تنذرے . طوطی . خارو . وغیره .

**مسئله** :- شمشتے . سمساره . هاتی . اهلی خر . قچر . دَ دے ټولو غوښه
حرامه ده . دارنګ دَ خرے پے هم حرام دی . او دَ آس غوښه حلاله ده . خو مکروه
ده .

**مسئله** :- د دریائی حیواناتو نه صرف مهے حلال دے . نور حرام دی . لیکن
مهے که په خپله مړ شه . دَ اوبو سرته راوخوت . هغه خوړل نه دی روا .

**مسئله** :- مهے که په نجس اوبو کښی وی . هم ئے په حلالوالی کښی څه کلام
نشته .

**مسئله** :- مهے او ملخ بے دَ ذبحے نه حلال دی . او دَ دے نه سوا بل داسے حیوان
چه غوښه ئے شرعاً حلاله وی . هغه حلالیږی . چه ذبحه شی . او کومه چرګه چه
ګرځی راګرځی پاک پلیت څیزونه خوری . هغه دے دَ درے ورزے بند ساتلو نه
پس حلاله وی . او بے دَ دے نه والی چه مکروه دی .

| دَ ذبحے بیان |
|---|

دَ ذبحے طریقه داده چه دَ حیوان په مرئی چوړکئے کیدی . بسم الله الله
اکبر او والی او چوړکئے پے راکاږی . تر دے پورے چه دا څلور رګونه پریکړے شی

ك شرح التنویر ۱۲ ك شامی ۱۲ ك هدایه و درر ۱۲ ك درمختار ۱۲ ك هدایه و درر ۱۲ ك شرح التنویر ۱۲
ك هدایه و در مختار ۱۲

یو حلقوم په کوم چه سا اخلی۔ بل مرئ[1] په کوم چه خوراک او اوبه ځی۔ باقی دوه شه رګک۔ چه د وینے جریان پکښ کیږی۔ یو، یو طرف ته وی۔ بل، بل طرف ته۔ او د دی په مینځ کښ حلقوم وی۔ او مرئ۔ دا څلور شو۔ او که د دے نه ئے صرف درے پرے کړه۔ نو هم ذبحه وشوه۔ لیکن صرف د دوو پریکول کافی نه دی۔

مسئله[2]:۔ که د ذبحے په وقت کښ ئے بسم الله قصداً ترک کړه۔ ویئے نه وے نو دغه حیوان مردار شه۔ خوړل ئے حرام دی۔ او که هیر شوی ئے وو۔ په دے وجه ئے وُ نه وے۔ نو حلال دے خوړلے ئے شی۔

مسئله[3]:۔ که دوه بیزے ئے پریښتے۔ یو د بل د پاسه۔ او یوه پیره ئے بسم الله الله اکبر او وے۔ چاړه ئے په دواړو راښکوده۔ یعنے په یوه ذبحه سره ئے ذبحه کړے۔ نو حلالے دی۔

مسئله[4]:۔ د مسلمان د لاس ذبیحه په هر صورت کښ حلاله ده چه با قاعده ئے ذبحه کړی۔ برابره خیره ده۔ چه ذبحه کونکے نر وی او که ښځه۔ او که وړوکے وی۔ او که چاړاوی۔ او که ناسنته وی۔

مسئله[5]:۔ ذبح په هر شی سره جایزه ده۔ چه مذکوره رګونه پے پرے شی۔ او وینه او بیوی۔ لکه د بانس تیره پڅه هډار لرونکے تیږه یا لښته وغیره۔ خو په ولاړ نوک او په غاښ مکروه دی۔ لیکن که ذبحه پے وشوه۔ نو دغه حیوان پے نه مردار کیږی خوړلے ئے شی۔

مسئله[6]:۔ بیزه غوا میښه وغیره چه حلالوی نو ذبحه ئے سنت ده۔ او نحر ئے مکروه دے۔ او اوښ چه حلالوی نو نحر ئے سنت دے۔ او ذبحه ئے مکروه ده۔ او نحر دے ته وائی چه د مرئ په کوزه حصه کښ مذکوره رګونه با قاعده پریکی د سینے څخه۔ او د بیزے غوا وغیره ذبحه پریښتلے سنت ده۔ او د اوښ نحر په ولاړے سنت دے۔ او که پریښتلے ئے نحر که هم پرواه نه لری۔

مسئله[7]:۔ چوړکے د حیوان پریښتلو نه مینه تیره کول مستحب دی۔ او پس د پریښتلو نه مکروه دی۔ دارنګ په لیسه چوړکے ذبحه کوله پس د با قاعده رګونو پریکیدلو نه هغه شان چاړه راښکودل۔ د ساه ختو نه مخکښ ئے سر پریکول یا څرمن ایستل راښکودل وغیره مکروه دی۔ غرض دا دے چه په کوم فعل کښ د حیوان

---

[1] مرئ په وزن د بری ۱۲ [2] هدایه ۱۲ [3] شرح التنویر ۱۲ [4] هدایه ۱۲ [5] نا پوره کړے نا ایسیتلے ۱۲ [6] کنز الدقائق و رد المحتار ۱۲ [7] درود و بحر ۱۲

تعذیب وی بلا فایده ـ هغه دے نه کوی ـ او ذبحے دپاره دَ حیوان پریسنلو سنت مرکده طریقه داده ـ چه قبلے طرف ته وی ـ بل طرف ته مکروه دی ـ

**مسئله[۱]** :- که چرګه ئے حلالوله ـ پس دومره ئے ذبحه کړه چه سر ئے تر ے پریکه نو کار ئے مکروه وکه ـ خو چرګه حلاله ده ـ خوړل ئے جایز دی ـ

**مسئله[۲]** :- ذبحه دے ذ غوټے نه بنکښته کوی ـ که بره ئے وکړه نو نه کیږی ـ خو اختلاف پکښں شته ـ او په[۳] بعضے کتابونو کښں ئے راوړی دی چه دَ درے رګونو قطعه که وشوه نو حقه خبره داده چه ذبحه وُشوه ـ کنی[ع] نو نه ـ

**مسئله[۴]** :- ذبحه په دوه قسمه ده ـ یوه اختیاری ده ـ بله اضطراری ـ اختیاری په حالت دَ اختیار کیږی ـ لکه دَ دے باب په شروع کښں چه ئے طریقه ذکر شوه ـ او اضطراری په حالت دَ مجبوری کیږی ـ مثلاً څاروے کوهی ته ولویده ـ را ایستے ئے نه شه ـ نو په څه شی دے وِ یئے کی ـ دَ هر ځائے نه چه ئے وینه اووته ـ نیس داپوره ذبحه شه ـ خو هلته که مړوی ـ د دغه زخم په وجه ـ یا معلومه نه وی ـ او که معلومه شوه چه د دغه زخم نه نه دے مړ ـ نو نه به خوړلے کیږی ـ

دارنګ که چرګه دَ وُنے په څانګه پورے ونخته ـ راخیستے نه شوه ـ یره وه چه مړی ـ نو چه زخمی ئے کی داپوره ده ـ ذبحه وشوه ـ دارنګ که یو څاروے وحشی شه ـ چه نیول ئے نه ورکول ـ او اختیاری ذبحه ئے ممکنه نه وه ـ نو هم وائی چه اضطراری ذبحه ئے کافی ده

| دَ قربانئ کولو فضیلت | **حدیث** دلوئی اختر په ورځ بنیادم رسوادُرض عمل نه بل) |
| --- | --- |

یو داسے نیک عمل نه کوی ـ چه هغه دَ خدائے پاک په نزد غوره وی ـ دَ وینے توئیولو (یعنے دَ قربانئ نه) او په تحقیق سره هغه (قربانی) به دَ قیامت په ورځ راځی سره دَ ښکرو او سرو دَ ویښتو سره دسوو ـ او دَ قربانئ وینه لا په زمکه نه وی پریوتے ـ او دَ خدائے پاک په بارګاه کښں قبولیت ته وُرسی ـ نو ځان پے ښه خوشحاله کړئ ـ (یعنے په پوره شوق سره ئے کوئ)

**حدیث[۶]** :- صحابه کرامو[رض] دَ نبی علیه السلام نه تپوس وکه ـ چه یا رسول الله صلعم ! دا قربانیانے څه شے دے ؟ نو وے فرمائیل ـ دا ستاسو دَ نیکه ابراهیم[ع] طریقه ده ـ صحابه[رض] اووے ـ مونږ له پکښں څه ثواب دے ؟ نو وے فرمائیل چه دَ هر ویښته

---

[۱] هدایه ۱۲ [۲] درمختار ۱۲ [۳] شامی ۱۲ [۴] زیلعی ورد المحتار ۱۲ [۵] ترمذی وابن ماجه ۱۲
[۶] رواه ابن ماجه واحمد ۱۲ [ع] بعضے وائی چه دَ غوټے نه بره درے واړه رګونه نشی پریکیدے ځکه چه څه رګونه د بنکتے نه په غوټه ختم شوی دی ـ بره نه دی تلی ۱۲ منه

په عوض کښې نیکی ده - نو دی اوویل چه یارسول الله (که بېزه نه بلکه) ګکړه ئے قربانی کړه نو اے ډوړئ هم دا حکم دے؟ نبی علیه السلام وفرمائیل - چه ډوړئ دَ هر ویښته په عوض کښې هم ثواب دے -

دقربانئ مسئلے

**مسئله** :- په کوم نصاب سره چه صدقهٔ فطر واجبیږی په هغے سره قربانی هم واجبیږی - برابره خبره ده - چه سړوی اوکه ښځه - او که نر ښځے - دَ قربانئ په ورځو کښې په قربانی کول واجب دی - اوکه دَ هغے هومره نصاب مالک نه وُ - نو قربانی پے واجب نه ده - لیکن که وئے کړه - نو په ښه کښې بد نشته - دارنګ په مسافر هم واجبه نه ده - اوکه وئے کړه نو ثواب دے -

**مسئله** :- څه رنګ چه صدقهٔ فطر دَ خپل نابالغ بچو دَطرف نه واجب - قربانی په ظاهر روایت کښې دا رنګ نه ده - بلکه صرف دَ خپل طرفه واجبه ده اوکه نابالغ یالیونے غنی وُ - نو ډوی نه به قربانی کیږی - اوکه نه؟ په دے کښې اختلاف دے -

**مسئله** :- که څوک دَ قربانئ په ورځو کښې اول اهل دَ وجوب نه وُ - بیا اهل شو - نو قربانی پے واجب شوه - مثلاً دَ لوئ اختر په میاشت کښې دَ دولسم تاریخ نور پریوتو نه مینه فقیر، صاحبِ نصاب شه - یا مسافر مقیم شه - یا کافر مسلمان شه - او صاحب نصاب نو قربانی پے واجب ده -

**مسئله** :- که غنی دَ قربانئ په ورځو کښې دننه مړ شه - نو دَ دغه قربانئ وجوب تے اوغورزیږ - مطلب دا دے چه دَ قربانئ دَ ورځو په اوله حصه کښې چه څوک اهل دَ وجوب وی - او قربانی ونکی - بیا په آخره حصه کښې داهلیت نه وُ ځی - نو وجوب تے ساقطیږی -

**مسئله** :- دَ لوئے اختر دَ میاشتے دَ لسم تاریخ نه دَ دولسم تاریخ نور پریوتو پورے دَ قربانئ کولو وخت دے - او چه په دریمه ورځ نور پریوت - لس دَ قربانئ وخت ختم شه - او دے درے ورځو ته ایام نحر وائی - په دے دریو ورځو کښې کومه ورځ او کوم وخت چه کول غواړی - کولے شی - خو غوره وړومبئ ورځ ده - بیا دویمه او دَ شپے نه ورځ غوره ده - او کوم ځائے چه دَ اختر مونځ کیږی - هلته دَ اختر دَ مانځه

له درمختار وشامی ۱۲ ۲ یعنے دضرورت اصلی نه فارغ لکه چه بینه بیان شوی دی په صدقه فطر کښې ۱۲ منه ۳ درمختار وشامی ۱۲ ۴ عالمګیری ۱۲ ۵ ردالمحتار ۱۲ ۶ هدایه ودرود ۱۲

نه بیته نه ده جایزه - او په بانډه کښې دَ اختر په ورز دَ صبا ختو نه پس جایزه ده -
اګرکه دَ اختر دَ مانځه وخت لا نه وی شوے - نو که دَ ښهرو سیدونکی داغو ښتله - چه
زه دَ اختر دَ مانځه نه مینه قربانی کوم - نو حیله ئے دا ده - چه دَ قربانۍ څاروے بانډے
ته ولیږی - چه هلته دَ اختر په ورز دَ صبا ختو نه پس ذبح شی - بیا دے دا او غواړی
نو اګرکه دَ اختر مونځ لا نه وی شوے - قربانی ئے جایزه ده - او دس ئے هم خوړلے
شی -

**فائده[۱]** :- دَ قربانۍ په اوقاتو کښې شپے دوه دی - دَ شپے قربانی کول جائز
دی - خو مکروه تنزیهی دی - شاید چه ذبح ښه ونه شی - او په ذبح کښې
څه فرق پریوزی -

**مسئله[۲]** :- که دَ اختر دَ مانځه نه پس ئے سمدستی قربانی وکړه - یعنے دَ خطبے
ختمیدو نه مینه نو هم کیږی - خو بده خبره ده -

**مسئله[۳]** :- که دَ اختر مونځ په څه عذر سره په اوله ورز ونکړے شو - او
قربانی په دغه ورز دَ اختر دَ مانځه دوقت نه پس وکړے شوه - نو کیږی -
دارنګ که په دے صورت کښې په دویمه یا په دریمه ورز دَ اختر دَ مانځه نه مینه کوی
هم خیر دے -

**مسئله[۴]** :- که دَ امام په مخکښې با قاعده شاهدی وکړے شوه - چه نن دَ
لوئ اختر ورز ده - نیس دَ اختر مونځ ئے وکه - بیا ئے قربانی وکړه - بیا معلومه شوه
چه نن دَ عرفے ورز ده - نو هغه قربانی شوے ده -

**مسئله[۵]** :- بیزه، پسه - ګډ کړه - غوا غوایه - میښه سنډا - اوښ
اوښه - دَ دے څارو ونه سوا دَ بل حیوان قربانی نه کیږی - بیزه او پسه چه دیو
کال نه کم وی - قربانی ئے جایزه نه ده - او غوایه - غوا - میښه سنډه چه د دوؤ کالو
نه کم وی - قربانی ئے نه کیږی - او اوښه اوښ چه دَ پنځو کالو نه کم وی - قربانی ئے
نه کیږی - او دَ ګډ حکم په شان دَ بیزے دے - لیکن[۶] که لمونږ ګډ یا ګډه په څربخت
کښې دَ یو کلنی په شان ښکاریږی نو دَ شپږ و میاشتو هم جایز دے - او بعضے
وائی بیا هم دَ شپږ و میاشتو نه چه زیات وی هله -

**مسئله[۷]** :- قربانی دَ وحشی حیوان نه کیږی - بلکه خاص ده په اهلی پورے

---

[۱] شرح التنویر ۱۲ [۲] درر ۱۲ [۳] تبیین الحقائق ۱۲ [۴] درمختار و شامی ۱۲ [۵] بعض په ګډ کښې لمونږ قیدنه دے ۱۲ [۶] ... [۷] درر و بحر ۱۲

اوکه د اهلی او د وحشی نه په شریکه بچے پیدا شه ـ هغه به تابع د مور وی ـ نو که مور ئے اهلی وه ـ لکه ساراتے پیسه په کورنئ بیزه اوخوت بچے تے وشه ـ نو ده قربانی کیدے شی ـ چه دکال نه کم نه وی ـ اوکه مور ئے اهلی نه وه ـ لکه کورتے پیسه په سارا نئ بیزه اوخوت ـ بچے تے وشه ـ نو نه ـ

مسئله ۱ : بیزه ـ پیسه ـ کبہ ـ کبره ـ اگرکه هرزیات څورب وی ـ هم ئے صرف یوه قربانی کیږی ـ یعنے شرکت پکښ جائز نه دے ـ او په غوائی ـ غوا ـ میخه ـ سنڅه اوښ اوښه کښ شرکت جائز دے ـ زیات نه زیات اووه تنه پکښ شریک کیدے شی ـ خو هله که چرے دوه خیرے وی ـ یوه داچه هر یو نیت د تقرب او د ثواب کړے وی ـ نو که یو پکښ صرف نیت د غوښو کړے وی ـ قربانی د یو هم ونه شوه دویمه داچه په دے کښ د هر یو تن حصه کم نه کم او ومه برخه وی ـ نو که د یو تن برخه د اووے نه کمه وه ـ قربانی د یو هم نه کیږی ـ د دے نه معلومه شوه چه د اوو نه کم کسان هم شرکت کولے شی ـ مثلاً که پنځه تنه په یوه غوا کښ شریک کیږی، کیدے شی ـ خو هله چه د یو حصه پکښ هم د اووے برخے نه کمه نه وی او د اتو شرکت پکښ نه دے جائز ـ ځکه چه هر یو ته اوومه برخه نه شی رسیدے ـ

مسئله ۲ : کوم څاروے چه په دواړو سترګو ړوند وی ـ یا په یوه سترګه ړوند وی ـ یا ئے د یوے سترګے نیمه برخه نظر ورک شوے وی ـ یا ئے لکئ یا یو غوږ پرے کړے شوے وی ـ کم نه کم نیمه برخه ـ نو قربانی ئے نه کیږی ـ دارنګ د کوم څاروی چه یوه خپه ګډه وی چه د حلالے ځائے ته پے نه شی تلے ـ په تلو کښ نه شی ګډولے ـ یا ئے ګډولے شی ـ خو زور پے ده هغه نه راولی ـ نو قربانی ئے نه کیږی ـ اوکه په تلو کښ ئے تے برخه مدد آخسته ـ څو ګوړ ګوړ نه ـ نو خیر دے کیږی پے ـ

او جائزه نه ده قربانی د هغه څاروی چه غاښونه ئے بالکل نه وی ـ اوکه یا د غو زیات تے لی نه زیات وی ـ نو کیږی پے ـ دارنګ جائزه نه ده قربانی د هغه څاروی چه د هغه پیدائشی غوږ ونه نوی ـ اوکه وړو خو واړه واړه وی نو خیر دے کیږی پے ـ او د کوم څاروی چه

له عالمگیری وشرح التنویر ردالمختار ۱۲ ـ ۳ هندیه و در و رد ۱۲ ـ ۳ په دے قسم عیب کښ د امام صاحبؒ نه څلور روایته دی چه دا عیب څومره اندازوی نو قربانی نه کیږی ـ یو دا دے چه د دریمے برخے نه زیات وی ـ دویم دا دے چه دریمه برخه وی ـ دریم دا دے چه څلورمه برخه وی ـ څلورم دا دے چه ماتی کم وی د تللی نه یا برابر ـ اول ظاهر الروایت دے ـ لیکن په درمختار او هدایه او کنز او ملتقی وغیره کتابونو کښ ئے څلورم روایت غوره کړے ـ نو فتوی په دے ده ـ دارنګ لیکلی دی ابن عابدین صاحبؒ ـ بله خبره دا ده که چه په دواړو غوږونو کښ ئے که څه حصه پرے کړے شوے وه نو اے د غه مجموعه به حسابیږی اوکه نه ـ نو په دے کښ اختلاف دے خو د احتیاط خبره دا ده چه جمع کول ئے پکار دی که مجموعه ئے د یو غوږ اکثر ته رسیده نو مانع دے شی ـ بزازیه ۱۲ منه

پیدا ایښی خکر نه وی۔ دَ هغه قربانی کیږی۔ دارنګ که وو خوبانت شوی وو هغه یې کیږی۔
لیکن که بالکل دَ جړه مات شوی وُ۔ بیا یې نه کیږی۔ خو هله چه مغز ته رسید لے وی۔ او
بعضے وائی چه چیندی نه۔ او په کوم څاروی چه خارخ وی۔ دَ هغه قربانی جایزه ده۔ لیکن
که دَ خارخ په وجه ډیر لاغر شوی وُ۔ بیا نه۔ او دَ خصی څاروی قربانی جایزه ده۔ او
کوم څاروے چه مرکونے وی۔ دومره لاغر شوے وی۔ چه په هډوکو کښں ئے مغز
نه وی پاتے۔ دَ هغه قربانی نه ده جایزه۔ او که دومره ډیر کمزورے نه وُ۔ نو هسے
خوار والے مانع نه دے۔ خو دَ قربانئ څاروے ښورب او نکره غوره دے۔ او کوم څاروے
چه مریض وی۔ او مرض ئے ظاهر وی دَ هغه قربانی نه ده جایزه۔

مسئله :۔ که دَ قربانئ دپاره ئے یو څاروے صحیح سالم واخست۔ بیا پکښں
څه عیب پیدا شه چه قربانی پے نه کیده۔ نو که غنی وُ۔ چه قربانی پے واجب وه
دَ هغے په ځائے دے بل قربانی کی۔ او که فقیر وی نو هم دغه دے قربانی کی۔ کافی ده[١]۔

مسئله :۔ که غنی سړی عیب ناک څاروے قربانئ له واخست۔ کوم عیب
چه په شریعت کښں دَ قربانئ نه مانع دے۔ نو دا قربانی ئے جایزه نه ده۔ البته که
دغه عیب ئے زائل شه۔ بیا ئے قربانی که۔ نو کافی ده۔ او که فقیر سړی دَ قربانئ
په نیت عیب ناک څاروے واخست۔ او دَ نذرِ غیر معین په طریقه پرځان قربانی نه وه
لازم کړے۔ نو دغه څاروی قربانی ئے کیږی۔ اګر که عیب ئے نه وی زائل شوے۔

دارنګ که غنی سړی قربانئ له څاروے واخست۔ بیا دغه څاروے مړ شه۔
نو وس به دے بل څاروے قربانی کوی۔ او که فقیر سړی قربانئ له څاروے
واخست۔ او قربانی ئے دَ نذرِ غیر معین په طور نه وه منلے۔ بیا دغه څاروے مړ شه
نو وس پے بله نشته۔

مسئله :۔ که دَ قربانئ څاروی دَ ذبحے په وخت کښں لتے تکوے۔ په دے
وجه ئے خپه مات شوه۔ نو خیر دے دا عیب نه دے معتبر۔

مسئله :۔ که زید قربانئ له څاروے آخستے وُ۔ هغه ورک شه۔ یا
غلا شه۔ نو دَ قربانئ دَ پاره ئے بل واخست۔ بیا ئے اولنے دَ قربانئ په دغه
ورز وکښں او موند۔ نو که زید فقیر وی چه قربانی پے واجب نه وی۔ دوا ړه به
قربانی کی۔ ځکه چه په ده باندے دَ خدائے پاک دَ طرفه لازم نه وه خو ده دَ آخستلو په ذریعه

---

[١] درمختار ۱۲ [٢] لیکن که فقیر په ځان باندے دَ نذرِ غیر معین په طریقه قربانی لازمه کړی وی۔
بیا دغه کافی نه ده بله به کوی ۱۲ منه [٣] درمختار شامی و بحر ۱۲ [٤] درمختار ۱۲ [٥] زیلعی و هندیه ۱۲

په ځان لازم کړه - نو په دواړه ئے آخستلی دواړه په لازم شوے - او که زید غنی وی - چه قربانی په واجب وی - نو صرف یوه ئے قربانی کی - دواړه په نه دی واجب - لیکن که ورستنے ئے قربانی که - او دے په قیمت کښ د اولنی نه کم و - نو څومره چه کمی ده - دغه څومره قیمت خیراتی ورکول مستحب دی -

مسئله :- که فقیر و - لیکن څاروے ئے په نیت د قربانئ واخستلو - نو د دغه څاروی قربانی په واجب شوه -

مسئله :- که بکر غائب و - په سفر کښ و - او دلته د هغه د طرفه په د هغه د اذن نه بغیر قربانی وکړه - نو نه اداکیږی - او که په شریکه قربانئ کښ ئے ورله حصه ونیوه په د نغه د امونه نو د یو هم اونه شوه -

مسئله :- که مثلاً یوه غوائے په شریکه د قربانئ د پاره واخستله بیائے لا قربانی کړے نه وه - یو شریک ئے مړ شه - پس که د هغه میراث خورو اجازت ورکه چه ناسوئے د خپله طرفه او د هغه د طرفه ذبح کئے - نو د ټولو شریکانو قربانی صحیح ده - او که بے د میت د وارثانو د اذن نه ئے ذبح کړه نو د یو هم ونشوه -

مسئله :- که چا نذر او مانه چه زه به بیزه قربانی کوم - بیائے د هغے په ځائے غوا قربانی که - نو جایزه ده -

مسئله :- که زید له د قربانئ څاروے قصاب ذبح کاوه - او ده د هغه سره په چړے لاس ایخے و - ملا دے ورکاؤ نو بسم الله ویل په دواړو واجب دی -

مسئله :- که زید په ذبح کولو پوهیده - نو خپله قربانی ورله په خپل لاس ذبح کول غوره دی - او که نه پوهیده - یا پوهیده خو بل نه ئے اووے هغه ورله ذبح کاؤ - نو هم جایزه ده - خو هلته ئے حضور غوره دے -

مسئله :- کوم وخت چه د قربانئ څاروے د حلالولو د پاره مخ په قبله پریے باسی دا دعا دِ لولی :- اِنِّیْ وَجَّهْتُ وَجْهِیَ لِلَّذِیْ فَطَرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ حَنِیْفًا وَّمَا اَنَا مِنَ الْمُشْرِکِیْنَ ط اِنَّ صَلٰوتِیْ وَنُسُکِیْ وَمَحْیَایَ وَمَمَاتِیْ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ لَا شَرِیْکَ لَهٗ وَبِذٰلِکَ اُمِرْتُ وَاَنَا مِنَ الْمُسْلِمِیْنَ ط اَللّٰهُمَّ مِنْکَ وَلَکَ بیا دِ بِسْمِ اللّٰهِ اَللّٰهُ اَکْبَرُ اووائی - ذبح دِ ئے کی - او پس د ذبحے نه دا دعا ویل پکار دی :-

---

۱ عالمگیری ۱۲ ۲ عالمگیری ۱۲ ۳ درمختار و شامی ۱۲ ۴ تاتارخانیه ۱۲ ۵ قاضیخان ۱۲
۶ عالمگیری ۱۲ ۷ رواه احمد وابوداؤد وابن ماجه ۱۲

اَللّٰهُمَّ تَقَبَّلْهُ مِنِّیْ کَمَا تَقَبَّلْتَ مِنْ حَبِیْبِكَ مُحَمَّدٍ وَّخَلِیْلِكَ اِبْرَاهِیْمَ عَلَیْهِمَا الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ - او که مثلاً د زید د طرفه ئے ذبحه کوله نو د مِنِّیْ په ځائے دے مِنْ زَیْدٍ اووائی - یعنی د هغه نوم دِ وا خلی -

مسئله[۱] :- کوم وقت چه د شریکے قربانئ غوښه تقسیموی . ښه به تول دِ تقسیموی چه د یوے حصے غوښه د بلے نه زیاته نه شی . کنی نو سود دے او ګناه دے البته که د غوښے سره ئے سر پښے یا څرمن هم کیخوده - نو د دے جانب د غوښے په کماست کښ څه بدی نشته -

مسئله[۲] :- غوره داده چه د قربانئ غوښے درے حصے کی . یوه خیراتی ورکی بله ځان ته پریږدی - او بله خپل خپلوانو او دوستانو له ورکی . یا ورله ضیافت وکی او کومه حصه چه خیراتی ورکوی - مستحبه داده چه هغه د دریمے نه کمه نه وی - لیکن که غریب وُ - او عیالداری ئے زیاته وه - نو د هغه دپاره ورکول نه دی غوره - بلکه خپل اهل وعیال ته ئے پریخودل غوره دی -

مسئله[۳] :- د قربانئ څرمن دے خیراتی ورکی - یا دے خرڅه کی . نو قیمت دے خیراتی ورکی - یعنی مستحق دے د هغے مالک وګرزوی - او که د قربانئ د څرمنے نه ئے ځان له څه شے جوړکه . لکه مصلے - بیل - بوکه - کوړے - وغیره - نو دا هم جائز دی - او د قربانئ څرمن قصاب له په اجرت کښ ورکول نه دی جائز - دارنګ د هغے قیمت او د قربانئ غوښه وغیره - بلکه اجرت دے ورله د ځانه ورکی -

مسئله[۴] :- که میت وصیت کړے وُ - له دے وجه نه د هغه میراث خوړ د هغه د طرفه د هغه د میراث نه قربانی وکړه - نو د غه غوښه وغیره ټول خیراتی ورکول واجب دی - دے تے نه شی خوړلے - او که وارث بے د میت د وصیت نه د خپلے اندے د هغه د طرفه تبرعاً قربانی وکړه - نو د دے حکم په شان د خپلے قربانئ دے - یعنی خیراتی ورکول پخول خوړل هرڅه ئے جائز دی -

مسئله[۵] :- که چا مستقل شندرا ومانه چه زه به دا څاروے قربانی کوم - نو د هغے قربانی پے واجب شوه - خو بس د قربانئ به ئے ټول خیراتی ورکی - که څه کمے ئے پکښ راوست - نو هغه همره قیمت به خیراتی ورکوی - او که د قربانئ ورزے ختم شوے او دغه څاروے ئے قربانی نه که - نو وس دے ژوندے خیراتی ورکی -

---

[۱] درمختار ۱۲ [۲] بدائع الصنائع ۱۲ [۳] درودرد ۱۲ [۴] بزازیه ودرد ۱۲ [۵] شرح التنویر ۱۲

مسئله[۱] :- که بېزه وغیره بلډ به وه ـ او قرباني ئې کړه ـ نو دا هم جائزه ده ـ که
بیا ئې بچي ژوندے او وت نو هغه به هم ذبح کړے شي ـ او که د قربانۍ دغه ځاروے ئې
لا نه وو ذبح کړے ـ او بچے ئې وشه ـ نو د هغې هم دا حکم دے ـ خو په دواړو صورتونو
کښ به د بچي غوښه وغیره ټوله خیراتي ورکوي ـ خوري به ئې نه ـ که څه ئې ترې او خوړه
نو د هغې قیمت به خیراتي ورکوي ـ خو بعضو والي چه دا حکم نفله دے ـ که قرباني په ابتداءً
د غنيٰ د ذمه واجب وه ـ بلکه ده په ځان لازمه کړے وه ـ ورنه بیا ئې خوړے شي ـ او بعضو والي
چه بچے دے ذبح کړي نه ژوندے دے خیراتے ورکي ـ

مسئله[۲] :- که قرباني په واجب وه ـ لیکن وے نکړه ـ او ورځے واړه ورځے تیرے
شوے ـ نو وس دے د پوره بېزے قیمت خیراتي ورکي ـ خو قیمت د هغې بېزے چه هغه
قابله وي د قربانۍ ـ

او که بېزه ئې د قربانۍ په نیت اخستے وه خو قرباني ئې نکړه ـ او د قربانۍ ورځے
تیرے شوے ـ او وس ورسره ژوندۍ وه ـ نو دا بېزه دے ژوندے خیراتي ورکي ـ برابره
خبره ده ـ چه دے غني وي او که فقیر ـ

---

[۱] درور د ۱۲ [۲] بدائع الصنائع ۱۲

# کتاب الحظر والاباحة

**دخوراک سکاک بیان**

خوړل[1] سکل په درې[2] قسمه دي - فرض، مباح، حرام - دومره خوړل سکل چه بنده يې د مرګه بچ شي - او مونځ په ولاړې وکړې شي - فرض دي - او د مړېدو[3] پورې مباح دي - او د دې نه زيات حرام - ليکن که صباء روژه نيوه - د نغې د پاره يې ځان تکړه کاوه - يا د ميلمه په خاطر نکيادۍ - بيا خير دے -

**مسئله[4]** :- د طعام شروع کولو نه مخکښې لاسونه اينځل سنت دي - او دا رنګ[5] پس د فراغت نه - او مخکښې په لاس اينځلو کښې شروع په کم عمرو سره پکار ده - او پس د فراغت نه شروع په مشرانو سره - او د طعام په شروع کښې بسم الله ويل او په آخر کښې الحمد لله ويل هم سنت دي - او که يې بسم الله ئے شروع کړه - په مينځ کښې يادشو - نو دس دے دوائي - بِسْمِ اللّٰهِ عَلٰى اَوَّلِهٖ وَآخِرِهٖ - او په طعام چه بسم الله وائی په زوره دې وائي - د پاره د دې چه نورو ته هم تلقين وشي - او په طعام باندې د بسم الله ويلو حکم هله دے - که چرته حلال طعام وُ - او د ډوډۍ د پاسه نمکدان ايخودل - پيالۍ اينځل - لاس په ډوډۍ پاکول - لاسونه په دسترخوان مکل مکروه دي او د ډوډۍ مينځ مينځ خوړل او غاړې پريخودل د اسراف خبره ده - ليکن که دا سې وي چه دا پاتې به بل وخوري بيا خير دے -

**مسئله** :- رياضت ډېر ښه شے دے - ليکن د نغې په خاطر خوراک دومره کمول چه بيا مونځ په ولاړې نه شي کولے - جائز نه دي -

**مسئله** :- د اضطرار په حالت کښې حرام هم حلالېږي په قدر د ضرورت سره - مثلاً که څوک د تندې مړکيده او سوا د شراب نه ئے نور څه نه مونده - او دا نه معلومه وه - چه په دې به ئے تنده مړه شي نو د نغې سکل ورله جائز دي - خو صرف دومره چه د مرګه يې بچ شي - بس - دا رنګ که څوک د لوږې مړکيده - او بې د خنزير د غوښې هيڅ شے نه مونده - نو د دې خوړل ورله جائز دي - په قدر د سد رمق - يعنې

---

[1] در مختار و شامی ۱۲ [2] او ځينې عالمانو دوه قسمه نور هم بيان کړي دي - يو نه مکروه وائي بل نه مندوب ۱۲ منه - [3] يعنې د کوم پورې چه د معدې خرابيدلو ګمان نه وي ۱۲ [4] در مختار و شامی و بحر. [5] شرح التنوير و رد المحتار ۱۲

صرف دومره چه د مرګه بچ کیدے شی بس. دارنګ که څوک د لوږے مړ کیږه. نو رخصت ئے نه موندلو

نورو د مے مال بے اجازته هم خوړے شی. خو صرف په قدر د ضرورت. اګرکه د هغې ضمان به

پے راځی. او که څوک د لوږے مړ کیږه او یل ورنه او وے چه حمالس پریکه وے خوره. نو

دانه دی جایز. ځکه چه د انسان غوښه په حالت د اضطرار کښ هم نه ده مباحه. له وجے د کرامت نه.

د نشه د څیزونو بیان | **مسئله** [۱]: شراب حرام دی او نجس دی. برابره خبره ده. چه لږ

وی. او که ډیر. بلکه د یوے قطرے هم دا حکم دے. شراب نه په کور کښ ساتل جایز دی

نه تے فایده اخستل. او نه ئے شرعاً خرید وفروخت کیږی. او شراب په لغت کښ

د سکلوهر شی ته وئیلے شی. لیکن دا ځائے ته مراد نشه آور شراب دی. کوم چه معروف

دی. او معلوم. او شراب[۲] که سرکه شی. نو دا سرکه پاکه ده. او خوړل ئے

جائیز دی. ځکه چه حقیقت ئے بدل شه. او شراب سرکه کول جایز دی

مکروه هم نه دی.

**مسئله** [۳]: د شراب نه سوا نور چه کوم نشه راوړونکی وچ څیزونه

دی. لکه بهنګ. افیم. چرس. وغیره. د هغې حکم دادے چه نجس نه دی.

لیکن څومره مقدار چه نشه راولی هغه خوړل حرام دی. او لږ مقدار چه نشه

نه راولی. د لهو په طریقه خوړل حرام دی. او د ضرورت د پاره جایز. لیکن د

دے نه هم پرهیز بکار دے. ځکه چه د لږ نه ډیر ته نوبت رسی. بیا سړے د ضرورت

او د غیر ضرورت خیال نه لری.

د زرو او د رینبمو استعمال | د سرو[۴] او د سپینو په لوښی کښ خوړل حرام دی. دارنګ

د زرو قاشوغه او د زرو سلائی او رجړومه استعمالول. د زرو په قلم مشوانړی

لیکل. د زرو په کرسئ کینا ستل وغیره وغیره دا ټول منعه ده. غرض دادے

چه دارنګ استعمال ئے نه د نر د پاره روا دے نه د ښځے د پاره. او د ښځے د پاره د سرو

او د سپینو استعمال د کالو په طریقه جایز دے. یعنې کالی ئے اچولے شی.

**مسئله** [۵]: د دارو د پاره د زرو ورق وغیره خوړل. خوزیدونکے

غابښ د سپینو په تار مضبوطول جایز دی. دارنګ د سرو پوزه جوړول

هم ضرورةً جایز دی.

**مسئله**: که مثلاً د اوبو سکو لوښے مات شوے وُ. هغه ئے د زرو

---

[۱] هدایه و در مختار ۱۲ [۲] هدایه ۱۲ [۳] در مختار و شامی ۱۲

پہ تار پیوند کہ۔ یائے پے د زرو پیزے و لگاوُ۔ نو دا ھم منعہ نہ دی۔ شودو مرہ ضبرہ دہ۔ چہ اوبہ دَ دغہ لوښی نہ سکی۔ نو خولہ دے پہ دغہ برا برنہ کڑی۔ او بعضے وائی چہ دغہ برابرلہ دے لاس ھم نہ وروړی۔ یعنے پہ وخت د بیئو کښں۔

دارنگ د تورے اودَ چوړکے پہ دستہ۔ اودَ آس پہ املونی ھم سپین زر لگول جا یُزدی۔ خو لاس بہ پہ ھغہ ځائے نہ کڑی۔ یعنے چہ نیسی ئے نو بل ځائے بہ نیسی

او دارنګ پہ رکاب کښں لگول ھم جا یزدی خو خپہ بہ پے نہ کڼ دی۔ لیکن امام ابو یوسف صاحبؒ وائی چہ دا ھم منعہ دی۔ او کہ څہ شی لہ دَ سرو یا دَ سپینو اوبہ ورکړے شوی وی۔ نو دَ ھغے استعمال منعہ نہ دی۔ اختلاف پکښں نشتہ۔ ځکہ چہ ھغہ بیا نہ لوړی۔ نو اعتبارئے نشتہ۔

**مسئلہ** :۔ کہ دَ سرو زرو او دَ سپینو زرو لوښئے پہ کور کښں دَ زینت دَ پارہ ایخی وُو۔ نہ دَ پارہ دَ فخر و مباھات۔ بلکہ دَ پارہ دَ اظہارِ نعمتِ الٰہی نو دا منعہ نہ دی۔ البتہ استعمال ئے منعہ دے۔ لکہ چہ مخکښں ذکر شو۔

**مسئلہ**[1] :۔ دَ بادشاہ او دَ قاضی او دَ بل صاحب ضرورت دَ پارہ دَ سپینو زرو گوتئ جایُزہ دہ۔ خو دَ یو متقال نہ دے زیاتہ نہ وی۔ او بعضے وائی چہ سنت دہ۔ او دَ دی نہ سوا دَ بل سړی دَ پارہ بعضے وائی چہ منعہ دہ۔ او بعضے وائی چہ غوره نہ دہ۔ او غورہ خبرہ دادہ چہ بے ضرورتہ مباح دہ۔ خو ترک ئے غورہ دے۔ او دَ وسپنے او دَ تانبے او دَ زیړو گوتئ منعہ دہ۔ نروی او کہ ښځہ۔

**مسئلہ**[2] :۔ دَ نگینے دَ مضبوطیا دَ پارہ پہ گوتئ دَ سرو میخ لگول منعہ نہ دی۔

**فائدہ**[3] :۔ پہ گوتئ کښں نہ خپل نوم نقش کوی او کہ دَ خدائے پاک نوم۔ او کہ بل مناسب لفظ۔ دا ټول جایُزدی۔ او دَ نبی علیہ السلام دَ گوتئ مبارکے نقش داؤ :۔ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰہِ (محمدؐ دَ خدائے پاک رسول دے) پہ یوہ کرخہ کښں محمدؐ لیک وُ۔ پہ دویمہ کښں رسول۔ پہ دریمہ کښں اللّٰہ۔ او دَ حضرت ابو بکرؓ دَ گوتئ نقش داؤ۔ نِعْمَ الْقَادِرُ اَللّٰہُ (ښہ قدرت لرونکے دے خدائے پاک) او دَ حضرت عمرؓ۔ کَفٰی بِالْمَوْتِ وَاعِظًا (مرگ پورہ نصیحت کوُدے) او دَ حضرت عثمانؓ

[1] درمختار و شامی ۱۲ [2] عالمگیری و شامی ۱۲ [3] درمختار و شامی ۱۲

لَتَصۡبِرَنَّ اَوۡ لَتَنۡدَمَنَّ (یا به صبر کوے یا به پښیمانه کیږے) اود حضرت علیؓ اَلۡمُلۡكُ لِلّٰهِ (ملک خاص دَ خدائے پاک دے - اود امام ابوحنیفه رح تُلِ الۡخَیۡرَ وَاِلَّا فَاسۡكُتۡ (خبره دَ خیر کوه - کنی نو چپ شه) اود امام ابو یوسف صاحب مَنۡ عَمِلَ بِرَأۡیِهٖ نَقَدۡ نَدِمَ (چا چه عمل په خپله رائے وکه هغه پښیمانه شه) اود امام محمدؒ صاحب مَنۡ صَبَرَ ظَفَرَ (چا چه صبر وکه هغه کامیاب شه)

**مسئله:-** ریښم اغوستل دَ نارینه دَپاره منعه دی - اود ښځے دَ پاره جائز دی - البته دَ نارینه دَپاره زیات نه زیات دَ ځلورو گوتو د عرض پورے اجازت شته - او دارنګ حکم دَ سوچه تیلے هم دے - (او دارنګ کوم ټوکے چه په سر و یا په سپینو وُدے شوے وی - لیکن بعضے وائی چه دا حکم خاص دَ سپینو دے نه دَ سرو - او دَ ریښمو په بالخ اود ریښمو په پلنګ پوش باندے نارینه له هم پره وهل او خوب په کول جائز دی - دارنګ نارینه له دَ ریښمو مچیردانئ هم جایزه ده - خوب پکښ کولے شی - او دَ ریښمو پر توګاځ دَ نارینه دَپاره ځینے وائی چه منعه دے او ځینے وائی چه نه - اود ریښمو ټوپئ وړله منعه ده - اګرکه دَ پټکی دَ لاندے وی - او که مثلاً یو ټوکے داسے وَ چه ځائے په ځائے په ریښمو سره نقش وَ - یا وُدے وَ یا په سُوچه تیله ...... خیکولے شوے وه - اود یو ځائے هغه مقدار هم د ځلورو ګوتو عرض ته نه رسیده - نو ظاهر مذهب دادے چه دَدے استعمال منعه نه دے - لیکن که دَ دنیا په ټول دَ سوچه تیلے ښکاریده - یا دَ ریښمو یعنے زیات دَ ځلورو ګوتو د عرض نه - نو د هغے استعمال وړله هم منعه دے - اود نارینه دَپاره دریښمین ټوکی دَ استعمال ممانعت چه بیان شه - دا حکم هله دے که چرے تنسته او بُوده دواړه دَ ریښمو وے - یا صرف بُوده - او که صرف تنسته د ریښمو وه او بُوده ئے دَ بل څه - مثلاً د تاروه یا دَ وړئ وغیره - نو دَ هغے استعمال دَ نارینه دَ پاره هم جایز دے - عرض ئے هر څو مره چه وی - او که صرف بُوده ئے د ریښمو وه نو دَ نارینه دَ پاره ئے دَ ځلورو ګوتو نه زیات استعمال صرف په جنګ کښ جایز دے ضرورۃً - ځکه چه توره ئے نه پرېکوی - او که تنسته بُوده ئے دواړه دَ ریښمو وے - نو دَ امام اعظم صاحب په نزد وړله په جنګ کښ هم دَدے استعمال جایز نه دے - ځکه چه ضرورت په اول قسم سره ...... دفعه کیدے شی - اود

له هندیه ودر مختار ۱۲

صاحبینوؒ په نزد په جنګ کښې جائز دے ضرورةً - او د ذرو او د ریښمو کوم حکم چه د نارینه دے - هغه د نابالغ هلک هم دے - نو د ذرو کالے اُو د ریښم اغوستل ورله منع دی۔

نو کوم صفائی | نوکونه پریکول د تر خونو اود نامه د لاندے ویښته لرے کول په غسل سره صفائی کول - او د نارینه د پاره د دے نه علاوه د سر با قاعده حجامت او د بریتو سنت آخستل په هره جمعه کښې یو پیره مستحب دی - او که په هره جمعه کښې نه وی - نو په پنځلسو ورځو کښې دے یو پیره وکی - او د څلوېښتو نه اړول مکروه تحریمي دی منع دی۔

مسئلهٔ[۲] :- نارینه که پوره سر پریږدی د غوږ و نو د نرمے پورے یا لین ښکته نو سنت دی او که تمول خرئی نو هم سنت دی - او که خرئی نه بلکه په مشین وغیره ئے آخلی - نو هم خیر دے - خو دا نه چه څه لرے کی - او څه پاتے لکه سونړے - ښترے - انګریزی سر - البته که مینځ ئے وخوایه باقی ئے با قاعده پریږدی - نو بدی پکښې نشته - او د نارینه د پاره د سر و یښته د ښځو په شان وُدل منع دی - ځکه چه دا مشابهت دے د ښځو - او د ښځے د پاره سر خریل د سر ویښته په مشین لرے کول قینچي کول حرام دی - په داسے ښځے باندے په حدیث شریف کښې لعنت ویلے شوے دے - ځکه چه دا مشابهت دے د نارینو سره۔

مسئلهٔ[۳] :- د ا ننګی ویښته لرے کول جائز دی - یعنے خط جوړولے شی - دا ننګ د وُرزو نه هم اخستلے شی - خو هله که د هجرا کانو سره مشابهت نه راته -

مسئلهٔ[۴] :- بریت خریلو نه بعضے بدعت وائی او بعضے سنت - او په دے طریقه قینچي کول چه د برے شونډے د برے غاړے سره برابر شی - سنت دی - په دے کښې اختلاف نشته او که بریت دواړو د هډو نه اوږده پاتے کوی نو خیر دے - خو چه باقی د سنت سره برابر وی۔

مسئلهٔ[۵] :- خریل - پریکول منع دی - البته که د یو موټې نه اوږده وه - نو څو مره حصه چه د موټې نه زیاتی وی هغه پریکولے شی - او د چلکار[۶] دواړو طرفو نه چه کوم ویښته دی - د هغې لرے کولو نه فقهاء بدعت وائی -

فائدهٔ[۷] :- شیخ عبدالحق محدث دهلوی د مشکوٰة شریف په شرحه کښې د بریت په بابت ویلی دی:- وحلق کردن لحیه حرام است وروش افرنج وهنود وغیرهم است - وگذاشتن آن بقدر قبضه واجب است - وآنکه آن را سنّت گویند یعنے طریقهٔ مسلوکه در دین است - یا به جهت آنکه

---

[۱-۲] عالمگیری ودر مختار وشامی ۱۲ [۳] تاتارخانیه ۱۲ [۴] ددوردد ۱۲ [۵] شامی وهندیه ۱۲ [۶] د کوزے شونډے د لاندے چه کوم ویښته وی هغې ته چلکار ویلے شی ۱۲ منه [۷] اشعة اللمعات باب السواک کتاب الطهارت صفحه ۲۱۲

[۸] لیکن که سر ئے خوږ وُ مثلاً نو د شرعی ضرورت په وجه جائز دی - هندیه ۱۲ منه

ثبوت آن بسنت ہست۔ چنانکہ درنماز عید گفتہ اند۔

**ترجمه:-** بیره خریل حرام دی۔ طریقه د فرنګیانو او د هیودوو غیره ده۔ او په قدر د قبضې ږیره پریښودل واجب دی (ځکه چه په حدیث شریف کښې امر راغلی دے۔ او امر اصالةً د وجوب دپاره وی) او ځوک چه ورته سنت وائی د هغو مطلب دا دے چه دا یوه دینی طریقه ده یا په سبب د دے چه د دے ثبوت په سنت سره یعنے په حدیث سره شوے دے۔ لکه د اختر و نو مانځه ته چه بعضو سنت ویلی دی۔ (یعنے د هغې هم دا مطلب دے)۔

**مسئله:-** د زینت په غرض سپین ویښته اخستل یعنے الیستل مکروه دی۔ او د مجاهد دپاره په دښمن باندے د رعب اچولو په غرض غوره دی۔ لکه د بریتو سنت اخستل او نوکونه پریکول سنت دی۔ لیکن د غازی دپاره ئے په دار الحرب کښې او ږده پریښودل مستحب دی۔

**مسئله:-** د پوزے ویښته دے اونه باسی۔ ځکه چه مرض ترے ولاړیږی۔ قینچی دے کی۔ او د سینے او د شا ویښته خریل د ادب نه خلاف خبره ده۔ او د مری ویښته دے نه خریٔ۔ لیکن د امام ابو یوسف صاحبؒ نه منقول دی۔ چه په دے کښې څه حرج نشته۔

**مسئله:-** د ټوخ ویښته خریل هم جائز دی۔ خو غوره خبره دا ده چه او باسی ئے۔ او د نامه نه لاندے چه کوم ویښته دی۔ نارینه د پاره د هغې خریل غوره دی۔ شروع دے کړی د نامه د غاړے نه۔ او که په دارونو لرے کوی۔ نو هم جائز ده۔ او د ښځے د پاره مسنونه طریقه دا ده۔ چه په ګوتو یا په نوسی وغیره ئے او باسی۔ خریٔ ئے نه۔

**مسئله:-** نوکونه په هر ترتیب چه پریکوی پریکوے شی۔ خو وائی چه ترتیب دا غوره دے۔ د لاس په ګوتو کښې دے مینه د ښی لاس په مسواکے ګوته شروع وکی۔ نو د چپے ګوتے پورے دے په ترتیب سره ورسوی۔ بیا دے د ګس لاس د چپه نه شروع کی۔ د غټے ګوتے پورے دے با ترتیب ورسوی۔ په آخر کښې دے د ښی لاس د غټے ګوتے نوک واخلی۔ بس۔ او د خپو په ګوتو کښې دے د ښے خپے د چپه نه شروع کی په ترتیب سره دے ځی۔ چه د ګسے په چپه ختم شی۔ او نوکونه په غاښونو پریکول مکروه دی۔ او وائی چه برګے ترے ولاړیږی۔ او په حالت د جنابت کښې ویښته خریل نوکونه پریکول وغیره هم مکروه دی۔

| دستر بیان | د نامه نه د زنګانه د کوزه حده پورے د سړی عورت دے۔ سړے د |
|---|---|

ل درود ۱۲ شرح التنویر رد المحتار ۱۲ هدایه ودرود ۱۲ هندیه ودرود ۱۲ درمختار شامی

سړی د بدن هر ځائے ته چه نظر کوی. خیر دے - سواد عورت نه - عورت ته ئے نظر کول حرام دی۔

دا رنګ مسلمانه ښځه د ښځې هر ځائے ته چه نظر کوی. کولے شی - سواد نامه نه د ز نګانه د و بچته پورے - او مسلمانے صالحے ښځې له د بدکارے ښځې نه ځان ساتل پکار دی - د ښځې په مخکښې دے ځان نه ښکاره نه کوی - چیونګے پینه وغیره دے د ځان نه نه بیرته کوی. ځکه چه دا به ئے پردو سړو ته صفت بیانوی. نو د فتنے برپا کیدلو اندیشه ده - له دے وجے نه شریعت کافره ښځه په نظر کښې د مسلمانے ښځې د پاره په شان د اجنبی نارینه ګرزولے ده۔

**مسئلهٔ** :- کومه ښځه چه د سړی محرمه وی - یعنے نکاح ئے ورسره د همیشه د پاره حرام وی - په نسب سره یا په سبب[٢] سره - نو ده له د ښځې مخ - سر - سینه - متې پنډے ته - د نظر کولو جواز شته - لیکن ګیډے او شا او ورنونو وغیره ته ئے نظر نه شی کولے - او مذکوره ځایونو ته د نظر کولو جواز بیان شه - دا حکم هله دے - که چرے په دے دواړو کښې د یونه د شهوت خطره نه وی - او که خطره وه - مثلاً ته ئے ورسره رودلے وُ - نو د شهوت د خوف په صورت کښې ورته نظر نه دے جائز۔

**مسئلهٔ[٣]** :- کومه ښځه چه د سړی خپله منکوحه یا شرعی وینځه وی - او د ښځې جماع ورله شرعاً حلاله وی - دے د ښځې ټول بدن ته کتے شی - او هغه د ده - بلکه اندام مخصوصه ته هم نظر کولے شی - لیکن غوره دا ده چه د یو بل اندام مخصوصه ته نه ګوری - ځکه چه په دے سره هیر زیا تیږی او د سترګو نظر کیږی۔

**مسئله** :- د ښځې مخ اګر که عورت نه دے - لیکن عالمانو د فتنے د خوف په وجه فتویٰ ورکړے ده - چه د پردی سړی په مخ کښې ورله مخ ښکاره کول منع دی - پرده ورله ضروری ده - بلکه یو و بچته دے هم نه ښکاره کوی - نو دے پورے ئے داوړی دی چه د خپل بدن و بچته او کوم چه په منګو کښې د سرو نه خیژی - هغه او نو کونه چه پریکی هغه دے داسے ځائے کیږدی چه د نا محرم سړی نظر پرے و نه لګی - ګنی نو ګناه دے - او د کوم رشته دار سره چه د دے نکاح د همیشه د پاره نه وی حرام ګله د تره ځوئ د ماما ځوئ د ترور ځوئ وغیره وغیره - د دی حکم هم په دے باب کښې په شان د پردی سړی دے - پرده ترے لازمی ده - او د ښځې خاوند چه کوم رشته دار وی - سوا د هغه د پلار او د نیکه

---

له درمختار وشامی ۱۲ ٢ے دسببؔ مراد رضاعت او مصاهرت دے ۱۲ ٣ے درمختار و رد المحتار ۱۲

نه - او سوا دَ دغه دَ ځامنونه - دَ هغوئ نه هم ښځې له پرده ضروري ده - بلکه د دا سې سړي په بابت کښې په حدیث شریف کښې راغلي دي - چه دے خومرګ دے - وجه دا ده چه دے بے خطره څي راځي - نو دَ فتنے ګنجائش پکښې پیردے - او دَ ښځې دپاره پرده څه رنګ چه دَ تندرست سړي نه ضروري ده - دا رنګ دَ خصي او دَ مجبوب او دَ مخنث نه هم ضروري ده او دَ نخ پښو لو کوم حکم چه بیان شه - دا هله دے - که چرے ښځه ځوانه وه - او که بوډۍ وي نو بیا نخ - د رغوے - دَ پړکونه ښکلته ځیے ښکاره کولے شي - فقط - او د نور بدن ښکاره کول دے له هم نه دي جائز - دا حکم دَ ښځې په حق کښې وُ - او نامحرمے ښځې ته دَ سړي دَ نظر کولو حکم هم دَ دے مسئلے نه معلوم شه چه منعه دي - بلکه ښځه که په برقع یا په چیونکي وغیره کښې پټه وه - نه ښکاریداه - او سړي دغه برقعے ته په شهوت سره کتل - نو دا هم حرام دي -

مسئله[1] :- کوم ځائے ته چه نظر حرام دے - هغې له لاس وروړل مسه کول هم حرام دي -

مسئله :- که شرعي ضرورت وُ - مثلاً دَ ښځې په متن زخم وُ - جرّاح ته ئے خو نو هغه صرف دغه ځائے به قدرِ ضرورت لیدے شي - او مسه کولے ئے شي - دپاره دَ علاج دا رنګ که قاضي په ښځه باندے څه حکم کاوُ - یا پے شاهدانو شاهدي کوله - نو دي دَ ضرورت په وجه دَ هغې مخ ته نظر کولے شي - البته مسه کولے ئے نه شي -

دا رنګ که دچا اراده وه چه فلانئ ښځه ځان له په نکاح اخلم - نو د نکاح نه مینه ئے یوه پیره مخ ته نظر کولے شي - خو په نیت دَ سنت - نه په نیت دَ قضاءِ شهوت - او مسه کولے ئے نه شي - او دا ئي په وقت دَ ضرورت دَ ښځې مخصوصه اندام ته په قدرِ ضرورت کتلے شي - بلکه عند الحاجت لاس هم وروړلے شي - بلکه داخلولے هم شي -

مسئله[2] :- سړي له دَ نامحرمے ښځې سره دَ تنهائیئ په ځائے کښې کیناستل ځملاستل حرام دي - اګرکه دواړه جدا جدا وي - او کټونه ئے دَ یو بل نه بیرته بیرته وي - او دَ محرمے ښځې سره تنهائي جائزه ده - لکه خور مور و غیره - لیکن دَ رضاعي خور سره خلوت جائز نه دے - او دا رنګ دَ ځوانے خواښے سره - ځکه چه په دے قسمه صورتونو کښې هم خوف دَ فتنے شته -

مسئله :- څه رنګ چه ښځې له دَ پردو سړو په مخکښې مخ ښکاره کول منع

دی۔ دارنګ پردی سړی ته کتل ورله هم منع دی۔ اګرکه هغه داؤنه وینی۔ نوکه دکړکئ په شیشوکښ یا دَ ورہ په درز کښ ئے سړے سینکاؤ۔ دا هم حرام دی۔

**حدیث** :- ام المومنین حضرت سلمهؓ وائی چه زه اوبله ام المؤمنین حضرت میمونهؓ دواړه دنبی صلعم سره وُو۔ نو عبدؓ الله ابن امؓ مکتومؓ چه یوړوند سړے وُ حضوبن کره راروان شه۔ نبی صلعم اوفرمائیل چه دواړه تے پرده وکئ۔ مااووے دے خو ړوند دے۔ مونږ نه وینی۔ نو وے فرمائیل۔ تاسو خوړوندے نه یئے۔ چه نه ئے اینئ۔

**حدیث** :- شځه عورت دے۔ کوم وخت چه دَکوره اوځئ۔ شیطان ورته نظر اوچت کی۔ یعنے دَ هغے دَګمراه کولو۔ اودَ هغے په وجه دبل ګمراه کولو کوشش کوی۔

**حدیث** :- جریربن عبد الله وائی چه په پردئ ښځه ناڅاپه بے اختیاره نظرولګی۔ په دے بابت کښ ما دنبی صلعم نه تپوس وکه۔ نوما ته ئے دنظر لرے کولو حکم وکه۔ یعنے په ناڅاپي غیراختیاری نظرسره ګناه نه دے۔ خو چه فوراً ئے ترے لرے کی۔

**حدیث** :- دَمعراج شریف په شپه نبی صلعم ته مختلف برزخی حالات ښوولی شوی وُو۔ دَ هغے نه یو دا هم دے۔ فرمائی چه ما دَ تنور په شان یو جوړځائے ولیده۔ خوله ئے تنګه وه۔ اوکیږه ئے اراته۔ په هغے کښ زبردست اوربلیده۔ چه لمبے به ئے اوچتے شوے نو به ئے دَ ځان سره راأوچت کړه۔ ټول بربنډ۔ اوسړی به وے چه رااووانه۔ لیکن چه لمبو به لږ غونډے ټلاوے وخوړ۔ بیا به ټول په اورکښ ښکته شو۔ ما جبرائیل علیه السلام نه اووے۔ دا کسان څوک دی۔ چه په دے سخت عذاب کښ مبتلا دی۔ نووے ویل۔ چه دا زنا کاران دی۔ تر قیامته پورے به ورسره دا چل کیږی۔ دا دَ یواوبږد صحیح حدیث دَ یوے ټکړے مضمون دے۔ نو اوګوره چه په آخرت کښ به ئے لاڅو ره څه سزاوی۔ اَعَاذَنَا اللّٰهُ مِنْهُ۔

**دَغیبت بیان** | دمسلمان غیبت کول حرام دی۔ قرآن کریم ئے مشابهت ورکړے دَخپل مړ ورور دَغوښو خوړلو سره۔ او غیبت دے ته وائی۔ چه ته دَیو مسلمان څه ناکاره خبره بیان کے۔ اوکه هغه ئے واوری۔ نو بد به ئے وګڼی۔ بس دا غیبت دے۔ اوکه دغه خبره په هغه کښ نه وه۔ بیا بهتان دے۔ اودروغ جوړول دی۔ او غیبت څه رنګ چه په صریح خبرے سره راځی۔ دارنګ دَ اشارے کنائے په

لـه که سړیے بالکل نه وی ړوند چه قدرت دَ جماع ئے نه وُ۔ نو هغه ته هم بے ضرورته کتل نه دی پکار ۱۲ منه ۲ رواه ابوداؤد والترمذی ۱۲ ۳ رواه الترمذی ۱۲ ۴ مسلم شریف ۱۲ ۵ بخاری شریف ۱۲ ۶ شرح التنویر وردالمحتار ۱۲

خبرے سره په فعل سره، په خط سره په حرکت سره۔ دَ ستر گو اوَ لاس په اشارے سره هم راځي۔

غرض دا دے چه مذکوره مقصد تے فهمیږي۔ نو غیبت دے۔ او حرام دے۔ نو که یو سړي دَ بل پیغله کوله گو ګو روان وُ۔ او معلومه شوه چه دا دَ فلانی پیغه ده۔ نو دا هم په غیبت کښې داخل دے۔

حضرت عایشهؓ وائي چه څمونږ کره یوه ښځه راغلے وه۔ کوم وخت چه هغه وتله او روانه شوه۔ ما په لاس اشاره وکړه چه چینګه ده۔ نو نبی صلّی الله علیه وسلّم وُفرمائیل تاﺋے غیبت وکه۔

**تنبیه**:۔ غیبت کول گناه کبیره دے۔ دَ غیبت په عوض کښې به دَ قیامت په ورځ دغیبت کونکی نیکیۓ غیبت کړی شوی له ورکیږی۔ له دے وجے نه امام اعظم ابو حنیفه رح فرمائي چه زه غیبت کوم نو دَ خپلے مورو له نه کوم۔ اوَ غیبت بیان ما په خپل کتاب "خیر الکلام فی شهر الصیام" کښې په تفصیل سره راوړے دے۔

**مسئله**:۔ دَ بعضے کسانو غیبت جایزدے۔ لکه دا:۔

(۱) یو سړے موځ اودس کوی۔ روژے نیسی۔ لیکن خلقو ته په ژبه یا په لاس ضرر رسوی۔ نو دَ هغه غیبت بل نه کول جایزدی۔ دَ پاره دَ دے چه په ظاهر حالت ئے دهوکه نه شی۔ دا رنګ بادشاه نه ئے بد ویل هم جایزدی۔ بلکه ثواب دے۔ دَ پاره دَ دے چه بادشاه ورنه زجر وکی۔ او دَ ایذاء رسانئ نه ئے منعه کی۔

(۲) یو سړے ښکاره په ښکاره یو ناکاره کار کوی۔ نو دهغه ناکاره کار ذکر ئے جایز دے۔ او که په پټه ئے کاوُه۔ نو نه۔

(۳) زید خیانت کر سړے دے۔ بکر دَ عمرنه مشوره او غونښته۔ چه زه دَ زید څخه امانت کدم۔ یا څه معامله ورسره کوم۔ نو عمرو ئے هغه ته حقیقت بیانولے شی۔ بلکه ښه ده۔

(۴) اعتقاد چه ئے دَ شرعے نه خلاف وی۔ مبتدع وی۔ دَ هغه دَ حال نه بل آګاه کول جایزدی۔ بلکه غوره۔ دَ پاره ددے چه داسی نے هم ځان وساتی۔

(۵) حاکم ته که فریاد کوی۔ چه فلانی راسره بد کړی دی۔ نو په دے کښې بدی نشته۔

---

له درودرد ۱۲ عنه او که نیکی ئے نه وه نو د هغه گناه به په ده کیخودے شی۔ ۱۲ منه

**مسئله :-** غیبت د مجهول سړی جائز دے۔ چه بل په پوه نه شی۔ لیکن که پوهه شه۔ نو اګرکه داو یو نکے نوم وانخلی۔ بیا هم غیبت دے۔

د سلام بیان | سلام اچول سنت دے۔ او جواب ئے واجب دے۔ او د سلام جواب چه ورکوی۔ نو سلام کونکی ته به ئے آوروی۔ او که هغه کو نړوی۔ نو په شونډو خوځولو به ئے پوهه کی۔

**مسئله :-** که په یو جماعت باندے چا سلام واچاو۔ نو په هر یو باندے جواب ضروری نه دے۔ بلکه د هغوئ نه چه یو تن جواب ورکی۔ دا پوره دہ۔

**مسئله :-** که چا د خط په ذریعه سلام داولیږه۔ نو د دے جواب هم واجب دے۔

**مسئله :-** که چا بل ته اووے چه زید ته ځما سلام اووایه۔ او هغه وکړه چه ښه دہ۔ نو سلام رسول په واجب شو۔ بیا کوم وقت چه دے د هغه سلام زید ته ورسوی۔ په زید باندے به د سلام جواب واجب شی۔ نو دا سے به وائی وَ عَلَیْکَ وَ عَلَیْهِ السَّلَامُ۔

**مسئله :-** که په لارے کښی دوه تنه ملاقی شو۔ نو کوم چه افضل وی۔ هغه دے سلام واچوی۔ او که دواړه په یوبل باندے په هیڅ سلام واچاو۔ نو هر یو به جواب ورکی۔ او بعضے وائی چه د هر یو جواب وشه۔ او تلونکے دے په ناست باندے سلام اچوی۔ او سور په پیاده۔ او ورو کے په لوئے۔ او لږ په ډیر۔ او که څوک د باهره راغے نو هغه به سلام اچوی۔ په حدیث شریف کښی راغلی دی۔ چه کوم وقت تاسو یو مجلس ته راشئ نو سلام واچوئ۔ او چه بیا تے ځئ نو هم سلام واچوئ۔

**مسئله :-** په بعضے حالتونو کښی د سلام اچولو حکم نشته۔ لکه خطبه لوستے شی۔ یا په مانځه کښی وی۔ نو سلام دے په نه اچوی۔ دارنګ که بانګ وائی یا اقامت کوی۔ یا تلاوت کوی۔ یا طعام خوری۔ یا بولو ته ناست وی۔ یا اودس اوچوی۔ یا د خپلے ښځے سره لګیاوی۔ یا د دینی کتابونو په درس کښی مشغول وی۔ یا اجنبی ښځه وی۔ یا فاسق معلن وغیره وغیره۔

صلهٔ رحمی | د خپلو خپلوانو سره خپلوی پاللو ته صله رحمی ویلے شی۔ په حدیث شریف کښی

---

ے درود ۱۲ ؎ درد رد ۱۲ ؎ تاتارخانیه وشامی ۱۲ ؎ مجرهایق ودرمختار وشامی ۱۲ ؎ مجرہایق ودرمختار وشامی ۱۲

راغلی دی۔ چه څوک صلهٔ رحمی ساتی۔ خدائے پاک هم دَ هغه سره خپلولی ساتی۔ او څوک چه ئے قطعه کوی۔ خدائے پاک هم دَ هغه سره قطعه کوی۔

دَ ټولو اماما نو صاحبانو اتفاق دے چه صله رحمی واجب ده۔ او قطعه کول ئے حرام دی۔ په عنم بنادئ کښې شرکت۔ سلام کلام۔ ناسته ولاړه۔ تلطّف او احسان کله کله په قدرِ طاقت ورائے لیږل۔ مددکول۔ حاجت ئے حتی الامکان نه رد کول۔ که کیدے شی نو په مباشت کښې ئے یوه پیره ملاقات کول۔ دا دَ صله رحمے طریقے دی۔

او دَ بخاری شریف دَ یو حدیث مضمون دے چه صله رحمی دے ته نه وائی چه هغه که ستا سره خپلولی ساتی۔ ته ورسره ساتے۔ کنی نو نه۔ ځکه چه دا خو بدل ورکرزول دی۔ بلکه دے ته وائی چه هغه اګر که نه ساتی۔ ته ورسره ساتے۔

مختلف مسئلے | که څوک اوپرنجیږی۔ نو هغه له مستحب دی چه اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ او وائی نو که وئے دے اویل چا نے واوریدو۔ نو په آوریدونکی باندے دَ هغے جواب واجب دے یَرْحَمُكَ اللّٰهُ دے او وائی۔ بیا دے په جواب کښې غوره ده چه پرنجیدونکے او وائی یَغْفِرُ اللّٰهُ لَنَا وَلَكُمْ یا یَهْدِیْكُمُ اللّٰهُ وَیُصْلِحُ بَالَكُمْ۔

مسئله:۔ که څوک باربار اوپرنجیږی او اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ اووے۔ نو درے پیرے دے ورله جواب ورکی۔ هاپله ئے جواب واجب نه دے۔ خو غوره دے۔

مسئله:۔ که پرنجیدونکی اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ اووے۔ او دا کښېنو تنو واوریدو نو چه یو تن جواب ورکی۔ کافی دے۔

مسئله:۔ دَ نبی صلّے اللّٰهُ علیه وسلم نوم مبارک چه واخلی۔ یا واوری نو درود شریف ویل ئے واجب شی۔ کم نه کم صلّے اللّٰهُ علیه وسلم دے او وائی۔ او که په یو مجلس کښې ئے څو څو واره نوم واخستے شه۔ نو دَ عالمانو اختلاف دے چه درود شریف په هره پیره واجب دے۔ او که نه۔ بعضے وائی چه په یو مجلس کښې یوه پیره یوره دے۔ او بعضے وائی چه نه۔

مسئله:۔ پلار نه په نامه ویل۔ او خاوند ته په نامه ویل منعه دی۔ بے ادبی ده۔ البته دَ ضرورت په وجه ئے نوم اخستے شی۔ بدی پکښې نشته

---

له هندیه ۱۲ سه شامی ۱۲ سه خانیه ۱۲ عه درود ۱۲ ﻫ عالمگیری ۱۲ سه المسائل التی تذکر فی هذا الباب کلها ماخوذة من شرح التنویر وحاشیة رد المحتار ۱۲

مسئله :- کوم وخت چه هلک یا جینۍ د لسو کالو شي نو هلک دې د مور خور وغیره سره نه خملي - او جینۍ دې د پلار او ورور وغیره سره نه خملي -

مسئله :- د بل د دستر خوان نه بې اجازته او بې رضا خیراتي وغیره له ورکول منعه دي -

مسئله :- شرط چه د دواړو طرفو وي ناجائز دے - لکه تا که دا کار وکه زه به یوه روپۍ درکم - که دے ونکه نو ته به راکے - هغه که د یو طرفه وي - بیا خیر دے -

مسئله :- عربي په ټولو ژبو کښې افضله ده - د جنتیانو ژبه به هم داوي - زده کول ئې ثواب دے - او بل ته ئې تعلیم ورکول هم ډیره د ثواب خبره ده -

مسئله :- راوړي ئې دي چه په جمات کښې دنیاوي خبرې کول نیکۍ داسې خوري لکه اور چه لرګے خوري -

مسئله :- حیوان اګر که حلال وي - د هغه شپږ څیزونه خوړل منعه دي :- بیوۓ[1] شوے وینه - د وړو بولو ځائے[2] (د نروي او که د ماده) خصیۓ[3] - سنتغان یعني غوټي - پوټنړئ - تریخے[4] - او دا رنګ[5] د مکروه تحریمي په سلسله کښې د ملا مغز هم راوړے شوے دے -

مسئله[6] :- که د ږی ختنه ئې وکړه - لیکن د حشفې دپاسه څرمن توله پرے نکړے شوه - نو که اکثره حصه یعني د نیمې نه زیاته پرېکړے شوي وي - بیا سنتولو ته ضرورت نشته - بلکه مختون به ګڼړے شي - او که دا رنګ نه وه نو ختنه ئې نه ده شوے -

مسئله[7] :- که بچے پیدا ایشي داسې وي چه حشفه ئې ښکاریږي - لیدونکي پې د سنت کړي شوي ګمان کاوي - او څه لږه څرمن چه پې پاتې وه - هغه پے تکلیفه نه شوه پرېکیدے نو بیره دِ خو دے شي - سنتولو ته ئې ضرورت نشته - ځکه چه سنتول د حشفې ظاهرولو د پاره وي - او دا ظاهره ده -

مسئله :- د دنیاوي مصیبت او د تکلیف په وجه د مرګ تمنّا کول منعه دي بلکه دا دعا دې لولي :- اَللّٰهُمَّ اَحْيِنِيْ مَا دَامَتِ الْحَيٰوةُ خَيْرًا لِّيْ وَتَوَفَّنِيْ اِذَا كَانَتِ الْوَفَاتُ خَيْرًا لِّيْ - فقط

والله تعالیٰ اعلم وعلمه وتمّ واحکم وصلّی الله تعالیٰ علیٰ خیر خلقه محمّد وآله واصحابه اجمعین

والحمد لله رب العالمین

تمّت بالخیر

[1] کنز الدقائق ۱۲ [2] عیني شرح کنز الدقائق ۱۲ [3] کنز الدقائق وزیلعي ۱۲ دا شپږ څیزونه شامي ذبایح په باب کښې ذکر کړي دي - او د کتاب په آخر کښې ئې نور تفصیل هم راوړے دے ۱۲